د سیاسي قدرت ترلاسه کولو وروسته سمدلاسه د دولت ټول سیاسي قدرت د شوراګانو په نوم تمرکز ومونډ ، د بلشویك ګوند د پروګرامونو منل ، ملاتړ او په عمل کې پیاده کول د شوروي دولت د ټولو اولسونو اساسي وظیفه اعلان شوه او د لینن له خوا د کارګري دکتاتورۍ مخکښ کمونستي ګوند ته د هیواد د ټولو پورته طبقو او قشرونو او د هر ډول مقامونو د ټکولو پوره واك او اختیار ورکړل شو . د ګوند د پورته نه کښته د لوی سکرتر ، سیاسي بیرو ، سیاسي کمیټې او د نورو ګوندي اورګانونو او غړو ترمنځ هرارشي ټینګه شوه ؛ ګوند د شوروي ټولنې اساسي محور وګڼل شو او د هیواد اجرائیه ، مقننه ، عدلیه اونظامي اورګانونو د ګوند له ایدیالوژۍ سره سم د ګوند د غړو د مشرتابه د لاندې فعالیتونه پیل کړل . له دې پرسیره د کمونسیت ګوند تش په نوم « دموکراتیك سنترالیزم » یا په دموکراسۍ ولاړ مرکزیت د یو اوږد ځنځیر حیثیت درلود او د دې ځنځیر په کړیو کې د شوروي اتحاد د ټولو جمهوریتونو واحدونه ، او په ختیز یورپ او آسیا کې د شوروي اتحاد لاس لاندې هیوادونه او په بین المللي سطحه د آسیا ، افریقا ، لاتین امریکا او یورپ یو شمیر کمونستي ګوندونه ، په کرملین پورې تړل شوي وو او د دموکراتیك مرکزیت له مخې یوازې په کرملین کې د ټول شوروي پلوه کمونستي بلاك لپاره هراړخیزه پالیسي ، پروګرامونه او پلانونه جوړیدل . پخپله په شوروي اتحاد او د شوروي اتحاد د ملګرو کمونستي ګوندونو په ټولو کدرونو او غړو کې دا روحیه تزریق کیدله چې د « دموکراتیك سنترالیزم » له نظامي ډوله دسپلین سره سم یوازې په کرملین کې ناسته رهبري کولای شي چې د کمونستي بلاك د دولتونو او ګوندونو په ټولو اورګانونو کې پوالي راولي او دغه ټول قوتونه په نړۍ کې د شوشلستي - کمونستي انقلاب د هدف په لور

سوق کړي . د کاغذ په مخ د هر کمونستي گوند په اساسنامه کې د
«دموکراتیك سنترالیزم » یا مرکزي دکتاتوری د اصولو له مخې د هر
گوند د مرکزي کمیټې او سیاسي بیرو غړو ته د هرې موضوع په باره
کې د آزاد نظر د څرگندولو ، تنقید او مخالفت حق ورکړل شوی و ، اما
په واقعیت کې له ډاره یو غړي هم د مرکزي کمیټې او سیاسي بیرو
په مجلسونو کې د آزاد نظر د ویلو ، تنقید او مخالفت جرآت نشو
کولای . د دې ډار تفصیل ته ضرورت نشته ځکه چې مونږ او تاسو د
خلق - پرچم له کودتا نه وروسته دغه ډرامې د مرکزي کمیټې او
سیاسي بیرو په ټولو مجلسونو کې پخپلو سترگو د کابل ټلویژن
په پرده لیدلې دي . « دموکراتیك سنترالیزم » د گوند د کدرونو او
صفونو ترمنځ په نظامي ډوله ډسپلین او د اکثریت په مقابل کې د اقلیت
او د پورته کدرونو په مقابل کې د ښکته صفونو په اطاعت سخت
ټینگار کاوه او د ډسپلین او هرارشي په وجه د گوند هر غړی مکلف گڼل
کیده چې د گوند د پورته اورگانونو پریکړې ، پروگرامونه ، پلانونه
او پالیسی په پټو سترگو ومني ؛ ټکي په ټکي یې عملي کړي . که
چیرې به د واقعیت یا شك له مخې د گوند یو غړی یا غړي له ډسپلین
څخه په سرغړونه محکوم شول نو دوی به په مختلفو تورونو تورن
کیدل او بیا به وروسته د شوروي اتحاد د جاسوسۍ او پولیسو شبکو ته
سپارل کیدل او د دغو شبکو د عذابونو له ډاره د گوند په غړو او د
هیواد په عادي خلکو کې د سرغړونې جرآت ډیر لږ لیدل کیده . همدا
شان د کاغذ په مخ د شوروي اتحاد د اساسي قانون ، د بین المللي قوانینو
او د گوند د اساسنامې له مخې د دغه هیواد جمهوریتونو ته د جلا
کیدو ، لاس لاندې هیوادونو ته د استقلال او خپلواکۍ او د نړۍ ټولو
شوروي پلوه کمونستي گوندونو ته د خپلو ټولنو له عیني شرایطو سره

سم د طبقاتي مبارزې بهير و اړه لرو اختلاف رو کېدل شوي وو ، لاکن د ګوندونو
د ... دموکراتیک سنټرالیزم په پاره د کمونستي دکتاتورۍ په وجه د ګوربه-
چوف تر راتګ او د شوروي اتحاد تر ړنګېدو پورې د دغه هیواد پر
جمهوریت د جلا کېدو خوب نشو لیدلای . لاس لاندې هیوادونو د
استقلال او خپلواکۍ په ځای د شوروي اتحاد د سور پوځ د مرګو لاندې
ژوند کاوه او شوروي پلوه کمونستي ګوندونو د کرملین د غلامۍ کړۍ
په غاړه ګرځوله .

## د دکتاتورۍ ناوړه اغېزې :

په هر نوم مختلفې دکتاتورۍ چې کېږي او پلې ته ورته ګډ
خصوصیات لري او د عنعنوي موډل دکتاتورۍ په تناسب په روانه
شلمه پېړۍ کې په ایډیالوژۍ ولاړو ګوندي دکتاتوریو چې یا د یوې
پوځي نظامي ډلې له خوا ، یا د افراطي ملي او یا د کمونستي
ګوندونو له خوا د آسیا ، افریقا ، لاتین امریکا او د یورپ په ځینو
ټولنو تحمیل شوې دي ، ډېرې انساني ستونزې او مرګ ژوبلې منځ ته
راوړې دي . ګوندي دکتاتورۍ سیاسي قدرت ته د رسېدو لپاره د هر ډول
مشروع او نامشروع وسیلې څخه استفاده کوي او قدرت ته له رسېدو
وروسته د خلکو ټولنیز ژوند په ټولو اړخونو په پوره انحصار منځ
ته راوړي او غواړي چې د ټولنې ژوند د خپلې ایډیالوژۍ په قالب کې
داسې جوړ کړي ، لکه څنګه چې ورته ګوندي ایډیالوژي حکم کوي .
د هېوادونو مشخص شرایط مشخص پارلماني نظام او د دغو
پارلمانونو د حل لپاره مختلفې نظامي ... کړنې . ځینې خلک د
اولس په ګوند پوهه او ګوندي تحمیلات لري او دوی د مسایلو د حل
لپاره د خلکو په خوښه او د خلکو په آزاده قضاوت ولاړ د ارتقا پر څو

دوگمي په سر کې ولاړ دکتاتوران د هر ډول نیمگړتیا او نقص څخه پاك او پورته گڼل کیږي . دوی ترپایه په دې تظاهر کوي چې د دوی ایډیالوژي مکمله ده ، د هروخت د مسایلو د حل لپاره ځواب لري او هیڅ بدلون نه مومي . که د ټولنې ځینې خلك د دوگما په نیمگړتیا شك وکړي او یا ورته په نوو شرایطو کې عملي نه ښکاري دغه ډول اشخاص هم د دوگمې په نوم د دکتاتورانو له خوا د شك او نیمگړتیا د ویلو جرأت نه کوي ، ځکه چې دوی د شك او نیمگړتیا د ویلو په ناوړه انجام ډیر ښه پوهیږي .

د ایډیالوژۍ په سر کې ولاړ په دوگما مین دکتاتوران « په ځان باندې د مینتوب » او « عقل کل » په ناروغتیا اخته وي . دغه ناروغتیا یا رواني بڼه لري او یا چاپلوسان دکتاتور په دغه ناروغتیا اخته کوي . دا یو منل شوی سیاسي واقعیت دی چې یو دکتاتور هم هغو پوه ، مستعد او په ځان متکي اشخاصو ته ځای نه ورکوي هغه چې خپله ټولنه د ټولو اوسیدونکو گډ کور گڼي ، د خلکو له حقوقو څخه دفاع کوي او یا د ټولنې ټول مسایل د واقعیتونو په رڼا کې ارزیابی کوي ، بلکه دکتاتور زیار باسي چې د چاپلوسانو یا په اصطلاح د « خان ښه وایی » ډله را پیدا کړي چې د دکتاتور هرنظر او عمل ونمانځي او په ټولنه کې د دکتاتور د مشروعیت لپاره د زړه د اخلاصه هلې ځلې وکړي . وایي چې چاپلوس او دکتاتور دوه نه جلا کیدونکی مخلوق دی . چیرته چې دکتاتور وي هلته به چاپلوسان حتماً موجود وي . دکتاتور په مدحه او صفت خوشحالیږي ؛ د دکتاتورۍ لپاره مشروعیت غواړي او چاپلوسان د دغو دواړو اړتیاوو د پوره کولو لپاره له هرچا څخه زیات خدمت کولای شي . له بلې خوا چاپلوس د چاپلوسۍ نه غیر بل هیڅ هنر نه لري او د خپلو شخصي گټو او مقام

پسې هم لالهانده سرګردانه ګرځي . چاپلوس په دې پوهيږي چې هغه دغه مقام او شخصي ګټې يوازې د چاپلوسۍ په برکت او هنر له دکتاتور څخه ترلاسه کولای شي . چاپلوسان تل د دکتاتور په ثنا او صفت کې دومره مبالغه کوي چې په اصطلاح زمکه آسمان او آسمان زمکه کړي او د انساني ټولو غوره اوصافو د ګلونو هار د هغه په غاړه کې اچوي . چاپلوسان دومره مخکې ځي چې هغوي دکتاتور ته د ايډيالوژۍ مبتکر نابغه ، عالم ، زيرك ، دراك ، زړه سواندی ، حليم ، زاهد ، متقي پرهيزګار ، امانتدار ، په خلکو او خاوره عاشق ، د خلکو د آرزوګانو مظهر ، د ټولنې د خپلواکۍ ضامن ، د اولس د حقوقو زړه ور ، د غليمانو ورکوونکی ، د فساد مخنيوونکی ، د لوی نسب لوی انسان ، د قوم او ملت وياړ ، نيکمرغه ، مکمل انسان او دا شان نور په سلګونو القاب ورکوي . چاپلوسان د دکتاتور د شخصيت پرستۍ لپاره د مختلفو افسانو تبليغ کوي ، لوی اتل ترينه جوړوي او خلك دې ته تشويقوي چې د لارښود خبره منل او ټکي په ټکي ورباندې عمل کول د ټولنې د پرمختګ او نجات يوازينۍ لار ده . په چاپلوسانو کې ښکيل دکتاتوران هم په دې باور تلقين کيږي چې هغوي واقعاً دغه ټولې ښيګڼې لري او يوازې دوی ته د انساني ټولنو د ژوند د سمون تاريخي رسالت ورپه غاړه دی . د هرځه نه لومړی دکتاتور د خپلې دوګما په حکم د ټولنې د ټولو غړو د آزاد فکر ، آزاد نظر ، آزاد قضاوت او آزاد عمل حقوق له منځه وړي يا بنديزونه ورباندی لګوي او د ټولنې خلك په دې مجبوروي چې د دکتاتور د خولې هر ټکی د کاڼي کرښه ومني او اطاعت يې وکړي ، بلکه دکتاتوران تل په دې هڅه وي چې د ټولنې د غړو ځينې خلك په مداحانو او لوی اکثريت يې په چوپه خوله ګونګيانو بدل کړي او خلکو ته د حقوقو په ځای محض وظايف او دندې ورسپاري

گروپي دکتاتوران د هیواد مخکنی اساسي قانون له منځه وړي او هغوی یا د فرمانونو او یا له خپلي خوښي سره سم د نافذ شوو قوانینو د لاري حکومت کوي . هغوی د هیواد ټولي دولتي او خصوصي موسسې او ا رگانونه د کنترول لاندي راولي او د دولت د مهمو پوستونو د چلولو لپاره د تخصص ، پوهې ، استعداد ، لیاقت او تجربې په ځای وفاداري اطاعت او چاپلوسی ته اهمیت ورکوي ولو که د وفادارو او چاپلوسانو ډله بې تعلیمه ، ناپوه ، بې استعداده ، نالایقه ، بې تجربې او علله هم وي . د ټولنې په اقتصادي منابعو کنترول د دکتاتور د تحمیل ، ټنلو او دوام ډیره مؤثره وسیله ده . همدا وجه ده چې هر دکتاتور د ټولني ټول اقتصادي فعالیتونه د خپل سیاسي سیستم پورې کلک کړي او خلکو ته په عمل کې ښیی چې هغه کولای شي چې پخپله خوښه چاته سیاسي حیثیت ، اجتماعي هویت او اقتصادي قوت ورکړي او له چا څخه یې واخلي . دکتاتور نه غواړي چې په ټولنه کې خصوصي ملکیت ، خصوصي تجارت او د خصوصي پانګې د زیاتوالي فعالیتونو ته لار پریږدي . هغه پوهیږي چې د خصوصي کار وبار د فعالیتونو په وجه د ټولنې فعال اشخاص خصوصي تجارت ته مخه کوي ، خصوصي موسسې منځ ته راځي ، دغه مؤسسې د پوه او فعالو اشخاصو د جلب او جذب لپاره رقابتونه کوي چې په نتیجه کې د ټولنې پوه او فعال اشخاص په دولتي اورګانونو کې له کار کولو څخه بې نیاره کیږي ، هغوي په خصوصي مؤسسو کې کارونه شروع کوي او د دکتاتور د امتیاز په ځای هغوي د خپلو استعدادونو او پوهې په برکت د ځانونو لپاره حیثیت ، هویت او اقتصادي قوت پیدا کوي چې دغه مستقله قشر د دکتاتور د دکتاتورۍ د رنګیدو لپاره لوی خطر ګڼل کیږي .

سیاست پوهان د هر اولس په تاریخ کې دکتاتورۍ ته توره دوره

وايي . په دې بدمرغه دوره کې د ټولنې د غړو وګړو استعدادونو ته مجال نه ورکول کيږي ، د ابتکار جرأت له منځه ځي ؛ مستعد اشخاص د بيګانه ګۍ له احساس سره مخامخ وي ، خلک له طبيعي او مدني حقوقو څخه محروم وي او ټولنه د مطلق جمود په حالت کې وي .
دکتاتور هم ايډيالوژي ده ، هم لارښود دی ، هم حکومت دی ، هم دولت دی او هم قانون . په دې تورې دوره کې د ايډيالوژۍ په سر کې ولاړ دکتاتوران هغه جنايتونه کوي چې يو رښتينی انسان يې تش په اوريدو شرميږي . بيا هم چاپلوسان ، مداحان ، ګوندي او تنظيمي ملګري دد- غو جانيانو او قاتلانو دومره ثنا او صفت کوي چې بنيادم ورته حيران شي . دولت او ګوند پوليسي بڼه غوره کړې وي ، د جاسوسي شبکو جالونه غوړول شوي وي ، ترور ته د دکتاتورۍ د حق درجه ورکړل شوي وي ، فردي او ډله ييز مخالفين نيول کيږي ، ټکول کيږي . په ناموس حملې ، په دولتي ، خصوصي ، او شخصي ملکيتونو قبضې ، چور ، تالاشي ګانې او غلاګانې روانې وي . کورونه او ښارونه ورانيږي ، مينې بورې کيږي ، ښځې کونډې کيږي ، ماشومان يتيمان کيږي ، کورنۍ بې سرپرسته کيږي ، آواره کيږي او په نتيجه کې ټولنه مادي شتمنۍ او معنوي ارزښتونه له لاسه ورکوي . افغانان له هر چا څخه زيات د دکتاتورۍ د تورې دورې په فجايعو ښه پوهيږي . دوی د تاريخ د بدترينو دکتاتوريو تجربه وکړه او کوي يې .
وايي : آزادي اخيستل کيږي ، ورکول کيږي نه ، يو دکتاتور هم په خپله خوښه آزادي نه ده ورکړې ، بلکه آزادي په زور اخيستل شوې ده او د آزادۍ لپاره ډيرو مستعدو ، پوهو او عادي انسانانو يو شان قربانۍ ورکړې دي .

## ماخذونه :

1. Arendt, Hannah: The Origins of Totalitarian-ism: New York: Meridian, 1958-.
2. Hallgarten, George, W. F. 1954 : Why Dictators ? The Cause and Forms of Tyrinical Rule: New York: Macmillan.
3. Witfogel, Karl, A. 1963, : Oriental Despotism: A Comparative Study of Total Power: New Haves: Yale University Press.
4. A Dictionary of Political. Though: Roger Scruton, 1982, The Macmillan Press, London.

# د ثور کودتا او که انقلاب ؟

د ۱۳۵۷ هـ ش کال د ثور له اومې نیټې راهیسې د شوروي اتحاد د ستر پروپاګنډې ماشین په پیروۍ د خلق - پرچم او د شوروي ترلاس لاندې نورو هیوادونو او ګوندونو اول نشراتي ارګانونو شپه او ورځ په پرله پسې توګه تبلیغ کاوه چې د ثور خونړۍ کودتا ته د « انقلاب » بڼه ورکړي . له همدې امله ځیني افغانان او حتی د آزادۍ نړۍ ځیني لیکوال هم د دغې پروپاګنډې تر اغیزو لاندې راغلي دي ؛ دوی هم په خپلو خبرو او لیک کې د ثور کودتا پرځای د « انقلاب » اصطلاح استعمالوي .

د ثور کودتا تر شا ګڼ تاریخي عوامل دي چې د دغو عواملو لټه د تزاري امپراتورۍ په سیاسي تاریخ کې ، په وروسته پاتې روسیه کې د

کار په مقابل کې اجوره اخلي او هم په دې دوره کې بې طبقې کمونستي دورې ته لار اوارېږي چې په بې طبقې کمونستي مرحله کې په ټولو توليدي وسايلو او ځمکو د ګډ ملکيت عمليه شروع کېږي او هرڅوك د خپل ضرورت له مخې اجوره اخلي او په پاى کې د دولت طبقاتي ماشين د ځرخې او نورو زړو شيانو سره يوځاى په ميوزيم کې ايښوول کېږي .

د شوروي اتحاد پوهانو د دغې افاقي فارمولې په چوکاټ کې د افغاني ټولنې د تاريخ تکامل په باره کې يو لړ څېړنې کړې دي او د دوى د دغې افاقي فارمولې له مخې افغاني ټولنې هم د نړۍ د نورو ټولنو په شان له کميون څخه د غلامۍ دورې ته او د غلامۍ له دورې څخه د فيوډالۍ دورې ته رارسيدلې ده . ( د کميون او غلامۍ د دورو له بحث څخه تيرېږو[1] او دلته يوازې د فيوډالۍ په موضوع ډېر لنډ ګرېږو ) سره له دې چې معاصرو نامتو ټولنپوهانو ، وګړپوهانو ( بشر شناسو ) تاريخ پوهانو ، اقتصاد پوهانو او د سياسي علومو پوهانو د کارل مارکس او د هغه د پيروانو له خوا د تکامل په ټوله نظريه او په مشخص ډول د فيوډاليزم د تکامل او تحليل په ډېرو اړخونو مستند علمي انتقادونه کړي دي او دغه افاقي تحليلونه يې ناقص ګڼلي دي ، که بيا هم مونږ د دغو انتقادونو او نيمګړتياوو باوجود د لويديزې نړۍ د فيوډاليزم په باره کې د مارکس او د هغه د پيروانو نظر او تحليل صحيح هم وګڼو ، سره له دې هم د لويديزې نړۍ د فيوډالۍ دورې او د افغاني ټولنې د مشخصاتو ترمنځ لوى توپير شته . لويديزو ټولنو د خپلو مشخصو جغرافيايي ، اقليمي ، اقتصادي ، تاريخي اومذهبي ، اجتماعي ، کلتوري او سياسي شرايطو په اساس تکامل کړى دى او د فيوډالي دورې ته رارسيدلي دي . د دې لويې وچې زراعت په بارانونو

کارگرو په نوم انقلاب او وحشت ، شوروي اتحاد ته د تزاري دوري مستعمري په ميراث پاتې کيدل ، د شوروي اتحاد « گوندي مرکزيت » او د افغان شوروي په سياسي روابطو کې اوزده او ژوره څيرنه غواړي چې په لنډو مقاله کې نشي خلاصه کيدلای .

د ۱۳۵۷ کال د ثور اومه نيته د پرون ورځي خبره ده . د پنجشنبې ورځ وه او د نيمي ورځې د رخصتۍ له امله ټول دولتي دفترونه رخصت شوي وو . د خلق - پرچم د ادعا برخلاف چې وايي يې « انقلاب » د ورځې په نه بجو شروع شو ، د غرمې پله د زغره والو قوې د يو شو تنو ټانکستانو له عملياتو څخه د کابل د ښار ډير لږ خلک خبر وو ، خو تر غرمې وروسته د پنځه بجو په شاوخوا کې په ارگ باندي د شينو الوتکو بمبارۍ د کابل ښاريان اريان کړل . ډير خلک د کورونو ، بامونو ته پورته شول او د الوتکو د بمبارۍ ننداره يې کوله . الوتکو د ښار په منځ کې پروت ارگ باندي داسې سمه بمباري کوله چې يوه بم هم له ارگ نه پرته په نورو ودانيو نه لگيده ( سيا ته د کابل په ښار کې گونگسې خپور شو چې دغه بمبارۍ روسي پيلوټانو کوله ) . ځينو به له يوه بل نه پوښتنه کوله « ته څه فکر کوې چې دا به څوک وي ؟ » .

د ځينو په نظر دا کودتا د ميوندوال د پلويانو له خوا کول کيدله؛ ځينو نورو د جنرال مير احمد شاه ملکيار ته منسوبوله ، خو ځينو نورو به ويل چې ښايي په ارگ کې دننه د محمد داود ، پرضد بغاوت شوی وي او دغه الوتکې د باغيانو د تکيلو لپاره بمباري کوي . ځينو به ويل ښايي دغه بغاوت د روسانو په اشاره د خلق - پرچم په طرفدارۍ شوی وي . تبصري اونظريې ډيري وې ، خو هيڅا هم څرگند ځواب نه شو ورکولای . د بمبارۍ په دوران کې د کابل راډيو ستيشن له خوا نه هيڅ ډول خپروني نه کيدلې يوازې عسکري موزيک غږيده . د شپې پر اوه

بلجو اعلان وشو ، خو سمدلاسي هغو خلکو د حفیظ الله آواز واوریده چې د هغه له آواز سره اشنا وو . هغه له ډګروال عبدالقادر او جګړن اسلم وطنجار سره مرکه وکړه د مرکې په پای کې اعلان وشو چې د داؤد رژیم نسکور کړای شو او د افغانستان سیاسي قدرت د « نظامي انقلابي شورى » په لاس کې دی . د دغه اعلان په اوریدو خلك د خپلې محکیمي پوښتني ، دا به څوك وي ؟ په ځواب پوه شول .

له کودتا نه دوه ورځې مخکې محمد داؤد د ( خلق - پرچم ) د مرکزي کمیټې مهم غړي نیول شوي ، ببرك او نور تیولي شو او د نورو په نیولو پسې هم کلکې روانې وې . د ګوند ډیر غړي پټ شوي وو ، د پیژندل شویو غړو څخه یو هم چیرته نه ښکاریده . دغه کودتا چې د شوروي له خوا نه جوړه شوې وه ، یوازې ( ۱۲۷ ) افغاني پوځیانو ، روسي مشاورینو او پیلوټانو پکې برخه اخیستې وه . د خلق - پرچم د ولو یوه ملکي غړي هم پکې برخه نه وه لرله . پر دغه واقعیت باندي حفیظ الله د یوې وینا په ترڅ کې داسې اعتراف وکړ : « من قوماندهء « انقلاب » را به ایشان ( صاحب منصبان ) رسانیدم به مجردی که گفتم انقلاب کنید اسلحه را برداشتند . برتانکها بالا شدند وطیاره ها را به پرواز آوردند وداؤد را طوری که ما وشما دیدیم نابود ساختند » . (۱)

ښاغلي لوستونکي په دې پوهیږي چې انقلاب او کودتا دوه جلا مفاهیم دي او د دې دواړو مفاهیمو په عملیو اوږده بحثونه او تحلیلونه شوي دي . انقلاب د اولس د ښتپر اکثریت په قوت بري ته رسیږي ؛ اولس یې ساتنه کوي او پروګرامونه یې عملي کوي . انقلابي رژیم ته په داخل کې د اقلیت مقاومت او بانډي یرغل ماتې ته نشي ورکولای او نه دغه ډول رژیمونه د خپلې ساتنې لپاره د بهرنیو عسکرو مرستو ته اړتیا لري . کودتا یوه چټکه نظامي عملیه ده ، د اولس پرځای یوازې

عسکر پکی قاطع رول لري او د یوه هیواد مسلط سیاسي رژیم یوازې د اردو په قوت له منځه وړل کیږي . همدا شان د ثور کودتا یوه نظامي عملیه وه او په ورځ یې د داؤد خان رژیم نسکور کړ او د افغانستان پر مسلمان ملت په وچ زور تحمیل شوه . په دغه برخه کې د امین وینا په خپله یو پوخ ثبوت دی ، دی وایي : ... « انقلاب کارگرې » شکل افغانی ساعت نه صبح هفت ثور آغاز وساعت هفت شام همان روز پیروزی آن در امواج رادیو افغانستان به جهانیان اعلام گردید » . (۲)

البته د امین په دې وینا کې « کارگرې انقلاب » او په « نه ساعتونو کې بریالیتوب » د توجه وړ ټکی دی . د دې ټکو له لوستلو څخه وروسته دا سوالونه را پیدا کیږي چې آیا افغانستان یوه صنعتي ټولنه وه ؟ څومره کارگرانو د « ثور په انقلاب » کې برخه اخیستي وه ؟ په دې « انقلاب » کې د خلق - پرچم د گوند د غړو په شمول د افغانستان اولس څومره برخه لرله ؟ آیا « اولسي انقلاب » په نه ساعتونو کې د بریالیتوب پړاو ته رسیږي ؟ اولس ولې د خپل انقلاب په ضد راپورته شوی دی ؟ د اولس په قوت منځ ته راغلی « انقلاب » د خپل حفاظت لپاره د روس عسکري مرستې ته څه ضرورت لري ؟ آیا له اولس څخه راپورته شوی لیډرشیپ ځان ته دا اجازه ورکوي چې د پردو عسکرو په لاس د خپل اولس وله ییزې وژنې ته ملا وتړي او د خپل اولس ، بانډې ، کلي او ښارونه دې له خاورو سره برابر کړي ؟ له هر چا څخه زیات د خلق - پرچم غړي په دې ښه پوهیږي چې دوی دې سوالو ته هیڅ رښتینی ځواب نه لري ، خو دغه خواران مجبور وو چې په واقعیتونو باندې د اعتراف پرځای د شوروي اتحاد پروپاگنډې په ماشین جوړ شوي ځوابونه او پوچ شعارونه د توتیانو په څیر اولس ته تکرار کړي تور سپین او سپین تور وښیی .

د اولسي جګړې په پای کې د شوروي سرو عسکرو د تزاري دورې په مستعمرو کې د ختیځ یورپ مستعمرې اضافه کړې ، په دې توګه شوروي اتحاد په نړۍ کې ستر استعماري هیواد وګڼل شو . له دې جګړې وروسته د آسیا او افریقا ډیرو اولسونو هم له لویدیزو هیوادونو څخه آزادي واخیستله خو ډیر ژر په ځینو هیوادونو کې پرله پسې کودتا ګانې وشوې ، سیاسي قدرت عسکري قواوو ته انتقال شو او د کودتا له لارې قدرت ته رسیدل ، د دریمې نړۍ د ځینو هیوادونو د سیاسي ژوند عمده فکتور وګڼل شو . د کریملین واکمن خروشچف ( ٦٤ - ١٩٥٤ ) دې نوې پدیدې ته متوجه شو او د شوروي اتحاد دولتي پوهانو ته یې امر وکړ چې د شوروي په ګټه د کودتا کولو لپاره منطق جوړ کړي . د نوی منطق له مخې په دریمه نړۍ کې د کارګرانو شمیر لږ دی او د بزګرانو د شعور سطحه ټیټه ده ، نو له دې امله د کمونستي ګوندونو د بریالیتوب چانس له نشت سره برابر دی . د روسي د دولتي پوهانو په نظر د دریمې نړۍ په عنعنوي ټولنو کې د کارګرو صنعتي مهارت او ډسپلین یوازې په عسکرو کې لیدل کیږي . هغه عسکري رژیم چې د لویدیز پرضد دریږي او له شوروي اتحاد سره نږدې روابط ټینګوي د شوروي اتحاد د سیاسي کړنلارې پلوي کوي او د شوروي اتحاد پلوي کمونست ګوند مخنیوی نه کوي ، نو دا په رښتینه یوه مترقي او د ملاتړ وړ کودتا ده .

د خروشچف په دوره کې د شوروي په ګټه د کودتا د بدلون نظریه پخه شوه ؛ سړې جګړې شدت وموند او دریمه نړۍ د لویدیز او ختیز د رقابت ډګر شوه . د دریمې نړۍ ځینې هیوادونه د لویدیز د نظامي تړونونو غړي شول ، خو ځینې هیوادونو د افغانستان په شمول د ناپییلتوب لاره غوره کړه . محمد داؤد ( ٦٤ - ١٩٥٤ ) د صدارت په

دوره کې د افغانستان د اقتصادي او نظامي پرمختګ په نوم مختلف
پروګرامونه وضع کړل ، په دې توګه کې شوروي اتحاد په ډېر بخت سره د
هغه سیاسي کړنلاره څارله . همدا وخت وچې د شوروي د پروپاګنډې
لوی ماشین او دیپلوماتیکو منابعو تاپیېلي افغانستان سره د شېه
ګاوڼډیتوب ، ګډ سوله ییز ژوند ، د یو بل په کورنیو چارو کې د نه
لاسوهنې او بې قیده او شرطه مرستو غوندې ډولونکي شعارونه پیل کړل . د
هغوی هڅه دا وه چې په دې توګه لوړو مقاماتو ته ځان ورنږدې کړي او
بیا په افغانستان کې پښې ټینګې کړي . داود پوهیده چې د
افغانستان په مسلمان اولس کې روس د یو لادینه او بې مذهبه هیواد
په نامه پېژندل شوی دی ، نو د دې لپاره چې له شوروي څخه د مرستو
اخیستلو له امله د کمونست په نوم ونومول نه شي نو په ۱۹۵۹ کال کې
یې لویه جرګه راوغوښتله ، د دغې جرګې له پرېکړو وروسته چې له
شوروي اتحاد نه د مرستو اخیستلو پروګرامونه لاسلیک کړل چې د دغو
پروګرامونو له جملې څخه د ۱۹۵۶ کال نظامي تړون د ۱۹۷۸ کال د
کودتا یوازینۍ اساسي بنسټ ګڼل کېږي . د دې تړون له مخې له
شوروي اتحاد څخه د وسلې اخیستل ، روسیې ته د زده کړې لپاره د
افغاني صاحب منصبانو لېږل او د شوروي مشاورینو راتګ پیل شو ، په
واقعیت کې همدغه تړون د افغانستان اردو په شوروي اتحاد پورې
وتړله . روسانو ، د افغان شوروي تړون پرخلاف د ځوانو افغاني صاحب
منصبانو د مغزو د پرمینځلو لپاره د عسکري زده کړې ترڅنګ د
مارکسیزم — لینینیزم تدریس هم پیل کړی و ، هغوی ټینګار وایست چې
افغاني پوځیانو ته د کمونستي سیستم نه پرته د نړۍ نور ټول سیاسي
او اقتصادي سیستمونه د فیوډالي ، ارتجاعي سرمایه داري او
امپریالستي رژیمونو په نوم استثماري ، استعماري ، ډاړه ، وراسته او له

منځه تلونکي سیستمونه معرفي کړي . اسلامي او افغاني روحیه یې مړه کړي او د خپلې ټولنې د سیاسي سیستم پرضد یې راوپاروي . هغه افغاني صاحب منصبان به چې په ذهني او فکري لحاظ دې ته چمتو شول چې مارکسیزم ، لیننیزم ، د ټولنو د پرمختګ د یوازیني علمي نظریې په توګه ومني او شوروي اتحاد د بین المللي کمونستي نهضت سر کې ولاړ مشر وروړ وګڼي ، شوروي ته وفاداري ، د مترقي کمونست کېدو لپاره د اساسي معیار په توګه قبول کړي ، نو بیا به دغه صاحب منصبان جي . آر . یو ( د شوروي اتحاد د نظامي جاسوسي شبکه ) ته سپارل کېدل . جي . آر . یو به دوی ته هر ډول اسانتیاوې برابرولې ؛ د نورو محصلینو په تناسب به دوی ته ډیر معاش ورکول کېده ؛ د دوی د ساعت تېرۍ وسایل ډېر وو ؛ روسانو به د دوی د قاچاقي مالونو په وړلو او راوړلو هم سترګې پټولې .

له دې کړي وروسته به له استخدام شوو صاحب منصبانو سره یوځای روسي مشاورین هم چې اکثره به د جي . آر . یو غړي وو افغانستان ته راتلل ؛ په دې توګه به په افغانستان کې هم د دوی او استخدام شویو صاحب منصبانو ترمنځ اړیکو دوام درلود . روسي مشاورینو د افغانستان د اردو په ټولو مهمو او حساسو ارګانونو کې وظیفې اجرا کولې او تل به یې کوښښ کاوه چې استخدام شوي صاحب منصبان د اردو په جاسوسي شبکه او نورو مهمو او حساسو ځایونو کې ځای کړي . د استخدام شویو صاحب منصبانو په واسطه به اردو کې کمونستي حلقې جوړې شوې ، حزب شروع شو او د تاشکند او ماسکو په اکاډمیو کې به دري او پښتو لیکل شوي کمونستي ادبیات چې په یوه یا بل نوم به چاپېدل د افغانستان د ځوانو صاحب منصبانو ترمنځ پټ وېشل کېدل . شوروي اتحاد ته د لومړي زده کړو بورسونه هم د

مشاورينو په مشوره او غوښتنه ورکول کيدل . هغو صاحب منصبانو چي په شوروي اتحاد کي د روسانو نوکرۍ ته غاړه ايښودله ، له راتګ وروسته دوی ته د افغانستان په اردو کي مهم او حساس پوستونه نه ورکول کيدل . (۳)

د افغان ، شوروي د تړونونو له لاسليك کيدو نه وروسته په ماسکو اوتاشکند کي د افغانستان پيژندني ځانګي پرانستل شوي او دولتي پوهانو ته وظيفه ورکړل شوه چي د کي ، جي ، بي ( د شوروي جاسوسۍ شبکه ) جي ، آر ، يو روسي ديپلوماتانو ، مشاورينو ، متخصصينو او استخدام شويو افغاني جاسوسانو د معلوماتو په رڼا کي د افغاني ټولني هر اړخيزه څيړنه پيل کړي . شوروي مشرانو غوښتل چي د دی پوهانو په واسطه دا معلومه کړي چي که چيري له هر ډول مرستو وروسته بيا هم د افغانستان حکومت د شوروي ضد دريځ غوره کړي نو په دي صورت کي شوروي څنګه کولای شي چي دغه مخالف رژيم ژر راتسکور کړي . دولتي پوهان دي نتيجي ته ورسيدل چي افغانستان يوه مسلمانه او عنعنوي ټولنه ده او د بهرنيو د يرغل او تحمل پرضد د جګړي او مقاومت اوږد تاريخ لري . په دي ټولنه کي د ګوند له لاري قدرت ترلاسه کول ډيره اوږده پروسه ده او د شوروي په ګټه ګوند له هر ډول چټك عمل څخه عاجز دی . په دغه برخه کي يوازي اردو کولای شي چي د شوروي په ګټه سملاسي بدلون راولي .

د دي فارمول سره سم روسانو په ۱۹۶۵ کال کي د خلق نمايشي ګوند جوړ کړ خو اساسي کار په اردو کيده . د روسانو دغه نمايشي ګوند په ۱۹۶۷ کال کي د خلق ، پرچم ، په دوه برخو جلا کړ او دواړو ته وظيفه ورکړل شوه چي په افغانستان کي د مارکسيزم - لينينيزم ادبيات خپاره کړي ؛ له افغانستان سره د شوروي اتحاد د مرستو تبليغ

وکړي ، ګوندي جذب وکړي چې په لينده کې کودتا ته د « انقلاب » بڼه ورکړلای شي . خلقيانو ته په اطرافو کې او پرچميانو ته په ښارونو کې وظيفه ورکړل شوه چې د شوروي او کمونستي ضد ګوندونو ، ګروپونو او اشخاصو په باره کې معلومات راغونډ کړي او دغه معلومات هره مياشت په منظم ډول د دواړو ډلو د مرکزي کميټو د مشرانو په واسطه په کابل کې د شوروي اتحاد په سفارت کې د کې ، جي ، بي شبکې ته ورسيږي . (٤)

د محمد موسی شفيق ( ٧٣ - ١٩٧٨ ) د صدارت په دوره کې کوشش شروع شو چې افغانستان د شوروي اتحاد د نفوذ له حوزې څخه راوباسي ، او د ناپيلتوب ريښتيني انډول منځ ته راولي . د دې په دوره کې له ايران ، پاکستان ، عربي ، او غربي هيوادونو سره تماسونه زيات شول او ځينو هيوادونو د افغانستان د پرمختيايي پروګرامونو سره د مالي او تخنيکي مرستو وعدې هم وکړې . دغو تماسونو د کرملين واکمن وارخطا کړل او دا انديښنه ورسره پيدا شوه چې هسې نه افغانستان هم د مصر په څير د شوروي اتحاد د نفوذ له حوزې څخه ځان وباسي او شوروي د پراختيا غوښتونکي سياست په لار کې خنډونه پيدا کړي . روسانو د دې تغيير د مخنيوي لپاره تلاش شروع کړ او محمد داؤد د پرچميانو او د کې ، جي ، بي د اجنټانو په واسطه متيقن کړلای شو چې د افغانستان د اردو ځوان صاحب منصبان په ده اعتماد کوي ، په ده راټوليږي ، او د ده مشرتابه لاندې کودتا ته چمتو دي ، دا موضوع يو پوه داسې تشريح کوي « کله چې داؤد او چپي عناصر سره نژدې شول نو د کودتا لپاره کار پيل شو » . داؤد ، د ١٩٧٤ کال د جولای له مياشتې وروسته ډير ژر داسې تشريح ورکړه : د يو کال څخه زيات ملګرو په دې موضوع ( کودتا ) فکر کاوه او مختلف پلانونه تربحث

لاندې نیول کیدل . څه وخت چې ګډوډي او د رژیم ملي ضد وضع له حده زیاته شوه نو د عملي ګام اخیستو فیصله وشوه . په کودتا کې د سردار داؤد ، له خوا د « ملګرو » انتخاب په لویدیزو مطبوعاتو کې دا فکر پیدا کړ چې په کابل کې د جولای کودتا د شوروي په طرفدارۍ شوې ده ، کودتا د کمونستانو له خوا ده یا شاید چې د شوروي د سفارت له خوا پلان شوې وي ، ځکه چې داؤد د صدارت د دورې پالیسۍ له ۱۹۵٤ کال نه تر ۱۹٦٤ پورې د شوروي اتحاد سره ډیر نژدې کړې و . محمد داؤد په خپلو ویناوو کې غونډو ( د ملګرو ترمنځ غونډې ) ته داسې اشاره کوله چې ګوندې دغه غونډې د لبرالانو ، چپې صاحب منصبانو او ملکي مامورینو سره کیدلې اما په واقعیت کې دا کودتا د هغو ځوانو صاحب منصبانو له خوا وشوه چې په شوروي اتحاد کې روزل شوي وو ، چې د دغو صاحب منصبانو له جملې نه یو څو تنه د محمد داؤد د مرکزي کمیټې د غړو په حیث هم وټاکل شول . شوروي لومړی هیواد و چې د محمد داؤد کوتا يې په رسمیت وپیژندله ، د ده رژیم يې د مترقي رژیم په نوم وستایه او د هر راز مرستو وعده يې ورکړه . خلق ، پرچم دواړو ډلو د داؤد رژیم څخه « د مترقي انقلاب » په نوم دفاع شروع کړه او د پرچم ، ډلې ډیر غړي د دولت په مختلفو ارګانونو کې استخدام شول .

د افغانستان اردو د لومړي ځل لپاره له ګډوډۍ سره مخامخ شوه .
د داؤد له رژیم د عسکري ترفیعاتو د اصولنامې پرخلاف واقعي کودتاچیانو او هم هغو صاحب منصبانو ته چې کودتاچیانو محض د شخصي ملګرتیا په اساس په کودتا کې د برخې اخیستونکو په نامه معرفي کړي وو ، په لوړو مقامونو سربیره دوی ترفیع هم ورکړې . په یوه شپه کې وړوکي ضابطان برید منان شول او لاس لاندې صاحب

منصبان د خپلو آمرانو آمران وټاکل شول . له دې ګډوډۍ څخه روسانو دوه ګټې ترلاسه کړې : لومړی دا چې د روس پلویانو په اردو کې د اطلاعاتو ( جاسوسۍ شبکې ) او عملیاتو په ارګانونو کې مهم او حساس مقامونه ونیول . دویم دا چې اطلاعاتي شبکو ته دستور ورکړل شو چې په اردو کې د روس ضد صاحب منصبان او یا هغه اشخاص چې په آینده کې د روسي پلانونو په وړاندې خنډ کیږي په یوه او بله پلمه د داؤد د رژیم په واسطه له منځه یوسي . د ثور له کودتا وروسته امین د روسي مشاورینو دغه تاکتیکي پلان خپل ګوند ته منسوب کړ او له دهمزنګ څخه د داؤد د وخت د سیاسي بندیانو « چې اکثره قاتلان او غله وو » د راخلاصیدو په وړځ دې موضوع ته داسې اشاره وکړه : « د داؤد پرضد ټولې کودتاګانې مونږ کشف کړې او د همده په واسطه مو له منځه یوووړې. زمونږ هدف دا و چې نورې کودتاوې شنډې کړو او یوازې د خلق دموکراتیک ګوند ته د سیاسي قدرت د نیولو زمینه برابره کړو » . (۵)

له ټولو څخه لومړی محمد هاشم میوندوال ، جنرال خان محمد خان او یو شمیر نور ملکي او عسکري صاحب منصبان د کودتا په تور ونیول شول . د خلق - پرچم دواړو ډلو د حکومت په ضد کودتا د امریکې د لمسون نتیجه وګڼله . میوندوال ترشکنجو لاندې مړ شو او یو شمیر نور کسان د مرکزي کمیټې په فیصله اعدام کړای شول . دا پیښه د خطر زنګ و او د افغانستان اولس ته څرګنده شوه چې د داؤد د رژیم دولتي ماشین یوازې د اسلامي او ملي قوتونو په ضد فعالیت کوي او له دې پیښې وروسته د رژیم د عمل او د خلکو د عکس العمل عملیه شدیده شوه او ورسره د مختلفو کودتاګانو په نوم د مهمو ملکي او عسکري اشخاصو نیول شروع شول . د دې مهمو اشخاصو له جملې څخه د

کیږي ، عیسوي مذهب لري او دغه مذهب په یو وخت کې له یوې ښځې سره د نکاح اجازه ورکوي ، فیوډال پخپله سیمه کې د سیاسي ، اقتصادي ، قانوني او اداري چارو خپلواکي درلوده ، هغه د پاچا مشاور او د جګړو په دوران کې د پاچا په طرفداری د خپلې سیمې د ولس سرلښکر و . د فیوډال ځمکه یا جاګیر نه ویشل کیده او دغه جاګیر د کورنۍ له یو غړي څخه بل غړي ته انتقالیده او په ځینو ټولنو کې بزګران هم خصوصي ملکیت ګڼل کیدل ، په ځمکې پورې تړل شوي وو او د جاګیر له خرڅلاو او انتقال سره جوخت یې د نوي فیوډال د ملکیت بڼه غوره کوله . په لویدیزو ټولنو کې شخصي او خصوصي ملکیت ته قانوني تحفظ ورکړل شوی و او د پاچا په شمول هیچا د بل جایداد او ملکیت په زور نه شو اخیستلای .

برعکس افغاني ټولنه په مرکزي آسیا کې پرته ده او د دې هیواد په سلو کې اته اتیا برخه غرونو او شاړو دښتو نیولې ده او په سلو کې دولسمه برخه یې د زراعت وړ ده . د دې زراعتي ځمکې لویه برخه د لویو او وړو ویالو په واسطه اوبه کیږي . د ثور له کودتا نه مخکې د ټولنې د اقتصادي ژوند ډیره برخه په زراعت او مالداری ولاړه وه او د دغه اقتصاد ترڅنګه د سرمایه داری د اقتصاد پروسه هم په ابتدایي بڼه رامنځته شوې ده . افغاني ټولنه مسلمانه ده ، خپل مشخص اسلامي او ملي ارزښتونه لري او په دې ټولنه کې ملي اومذهبي ارزښتونه دومره له یو بل سره اخښل شوي دي چې ډیر خلك یې له یو بل څخه جلا کولای نشي . په دې ټولنه کې بډایان یا د ډیرو ځمکو خاوندان د یوې ښځې په ځای دوه او درې او کله څلور ښځې کوي ، طبیعي ده چې د یوې ښځې په تناسب د ډیرو ښځو اولاد هم ډیر وي . د اسلامي قانون له مخې د پلار ځمکه یا د پلار په ژوند یا د هغه له مړینې نه وروسته د

اسلامي نهضت مشران پوهاند غلام محمد نيازی ، مولانا عطاءالله فيضاني او انجنير حبيب الرحمن او له اردو څخه جنرال ميراحمد شاه نه پرته نور په سلګونو مهم اشخاص د روسي ټيپ غير انساني شکنجو سره مخامخ شول . د نيول شوو کسانو لږ شمير د داؤد په دوره کې او ډير شمير نور يې د ثور د خونړی کودتا نه وروسته شهيدان شول .

عملي تجربې محمد داؤد ته وښودله چې د روس پلويانو هغه له اردو او اولس څخه تجريد کړ . د افغانستان د خلکو د اسلامي او ملي مقاومت سره يې مخامخ کړ او افغانستان يې د شوروي اتحاد ترلاس لاندې هيوادونو کيلي ته ورنږدې کړ . هغه له ۱۹۷۶ کال راهيسې له روسانو د ليرې کيدو تګل پيل کړ . د ګوند جوړولو هڅې شروع شوې ، پرچميان يې وشړل ، اساسي قانون نافذ شو ، د ناپيلو هيوادونو په غونډه کې يې د روس په شمول د سترو قدرتونو پراختيا غوښتونکې سياست وغانده او په پای کې يې د خلق - پرچم د نمايشي ډلو له منځه وړو اراده وکړه .. د روس د نمايشي ډلو مشران يې هم ونيول . خو له بده مرغه دغه کار يې بيخي ناوخته پيل کړ ، له همدې امله دې ناوخته هلو ځلو افغانستان او هغه ته هيڅ ګټه ونه رسوله . دا ځل روسانو اراده وکړه چې له « منحرف داؤد » څخه سياسي قدرت مستقيماً خپلو نوکرانو ته انتقال کړي او لومړی د غيرمستقيم او وروسته د مستقيمې مداخلې لپاره لاره هواره کړي . د ثور په اومه نيټه د کابل ښاريانو په خپلو سترګو وليدل چې د روسانو له پلان سره سم د تجريد شوي محمد داؤد رژيم ډير په اسانه رانسکور شو . دی له خپلې کورنۍ او ملګرو سره ووژل شو او په افغانستان کې د خروشچف د دوري د دولتي پوهانو له خوا د کودتا نظريه کټ مټ عملي شوه . (۶) دغې نظريې ته امين په خپله وينا کې داسې اشاره وکړه : « رهبر کبير ما

( تره کی ) با درك شرايط کشورهای روبه انکشاف مثل افغانستان معتقد بودند قوت مرکز یی که در سرنگونی رژیم فیودالی وگرفتن قدرت سیاسی نقش مؤثر پرولتاریا را بازی کرده میتواند قوای مسلح است » . (۷)

## ماخذونه :

۱ - متن بیانیه ها ومصاحبه ها نورمحمد تره کی وحفیظ الله امین ، نشرات مطبعه ریاست نشرات وزارت دفاع ، حوت ۱۳۵۷ ، ۱۸۵ مخ .

۲ - ایضاً ۱۶۱ مخ .

۳ - لمعفو صاحب منصبانو سره مرکه چې په شوروي اتحاد کې یې تعلیم کړی دی .

٤ - د لیکوال شخصي یادداشتونه .

5. Hyman; Anthony-Afghanistan under the Soviet Domination Hong Kong, 1982, P.64.

٦ - له خپلو یادداشتونو څخه .

۷ - متن بیانیه ها ومصاحبه های نورمحمد تره کی وحفیظ الله امین نشرات مطبعه ریاست نشرات وزارت دفاع ، حوت ۱۳۵۸ ، ۱۵٦ مخ .

# د نجیب د اساسي قانون طرحه

کله چې روسي مشاورینو او د خلق - پرچم ځینو غړو د ( اساسي قانون په طرحه ) کار کاوه نو د طرحې د جوړېدو لپاره د کمونست بلاك د هیوادونو قوانین ټکي په ټکي لوستل کیدل . د دوی په اصطلاح طرحه ( عمومي رايی ) ته وړاندې شوه او « د خلکو له خوا » تایید شوه . اما سیاسي څارونکي له مخکې څخه پوهیدل چې دغه طرحه به د گوند د مشرتابه له خوا یوازې د خلق - پرچم غړو ته په لاس کې ورکول کیږي او په نتیجه کې به د دوی تایید ته « د عمومي رايې » نوم ورکوي . په پای کې دغه طرحه د ١٣٦٦ کال د سرطان په میاشت کې خپره شوه ، او له خپریدو وروسته له کمونستي معمول سره سم دغه طرحه یوازې د گوند د سازمانونو له خوا د « گوند د رهبری

په نبوغ » د شاباس د شعارونو په چیغو او مارشونو ونمانځل شوه .

دغه طرحه ۱۲ فصلونه او ۱۳۷ مادې لري چې هرفصل او هره ماده یې ځانګړی تحلیل غواړي . په دې مضمون کې یوازې د طرحې په هدف ، ملي روغه جوړه ، په لومړی ، دویمې او څلورمې مادو او د لویې جرګې په فصل خبرې شوې دي .

د کابل رژیم له خپرونو څخه داسې ښرګندیږي چې مجیب غواړي چې د ۱۳٦٦ کال د قوس په اوومه نیټه په کابل کې یوه نمایشي لویه جرګه جوړه کړي او په نمایشي جرګه کې د نورو پریکړو په ترڅ کې دغې طرحې ته د « اساسي قانون » نوم هم ورکړي .

مخکې له دې چې مونږ د طرحې ځینې مادې وڅیړو ، دلته په دې برخه کې د کمونستي هیوادونو د اساسي قانون د ماهیت او د هغې د عملي اړخ لنډه توضیح ضروري ده .

د قانون له مخې په هر کمونستي هیواد کې ګوند او دولت دوه جلا مؤسسې دي چې ګوند defasto ( واقعیت ) او دولت dezure ( قانون ) بڼه لري . په کمونستي هیواد کې ګوند یو منل شوی دکتاتوري واقعیت دی ، اما قانوني بڼه نه لري ، بلکه قانون د دولت د اجرائیه ، مقننه او قضائیه اورګانونو په نوم جوړیږي او د قانون له مخې یوازې دغه اورګانونه د قانون د عملي کیدو صلاحیت لري . اما په واقعیت کې د هر کمونستي رژیم د قانون د جوړیدو او عملي کیدو اساسي صلاحیت د ګوند د مرکزي کمیټې او په مشخص ډول د ګوند د سیاسي بیرو په سر کې د ولاړ عمومي سکرتر په لاس کې وي ، چې په عمل کې د دولت نورو اورګانونو ته د ګوند له خوا د وضع شوي قانون له پیاده کیدو پرته بل هیڅ صلاحیت نه دی ورکړل شوی . ګوند د کورنیو او باندنیو چارو پالیسي جوړوي او د شرایطو له بدلون سره

سم د هیواد دښمنه او د باندې خلکو ته د تیرایستلو په هڅه په
خپله پالیسۍ کې تاکتیکي بدلون راولي ، څو ترلاسه پوړي یو
متعهد کمونستي ګوند په خپله ستراتیژي کې چې په لاس لاندې توانیه
کې کمونستي پړاو ته د رسیدو او په نړۍ کې د کمونیزم د خپریدو او
حاکمیت په بنسټ ولاړه ده کوم بشپړ بدلون نه دی راغلی ، بلکې د
سیاست پوه میکاولي سیاسي فارمول له مخې کمونستي ګوند د هغه
« نوي شاهزاده » مقام ترلاسه کړی دی ، چې د هیواد ټول ا رګانونه
دغه نوي شاهزاده ته مسؤولیت لري ، څو خپلواکه او خپل سر شاهزاده
هیچاته مسؤولیت نه لري .

د طرحې په هدفونو کې « د ملي یوالي ټینګښت او ملي روغې
جوړې ته په رسیدو » ټینګار شوی و . د اساسي قوانینو ډیر ابتدایي
شاګرد هم په دې پوهیږي چې د هر خپلواک دولت اساسي قانون د ټولنې
آني او تیریدونکو مسایلو ته د هدف مقام نه ورکوي ، بلکې اساسي
قانون د یو هیواد د اوسیدونکو له خوا منل شوی ملي وثیقه ګڼل
کیږي ، چې اساسي بنسټ یې د ملت د راتلونکې اوږدې مودې په
اهدافو ولاړ وي او دغه ملي وثیقه د هیواد اوسیدونکو او راتلونکو
نسلونو ته تل د ټولو ملي اړخونو د سمون په برخه کې پرله پسې
لارښوونه کوي . د کابل رژیم له خوا په طرحه کې د « ملي روغې
جوړې » اني او تیریدونکي هدف ته په اساسي قانون کې ځای ورکول د
لوستونکې په ذهن کې دوه پوښتنې راپورته کوي :

لومړی دا چې د « ملي روغې جوړې » مساله په خپله په روسانو پورې
اړه لري . له افغانستان څخه د روسانو د یرغلګرو قواوو بې قید وشرطه
ایستل ، د تحمیل شوي رژیم تغر ورټولول او خلکو ته د خپلې خوښې
رژیم د ټاکلو حق ورکول ، د افغانانو د خپلمنځي ملي روغې جوړې

یوازینی اساسي لار ده . خو موږ پوهیږو چې روسان په دغه تضاد ښه پوهیږي. تضاد ډېر ساده دی. که چیرې له افغانستان څخه شپلي یرغلګري قواوي وباسي نو د دوی له خوا تحمیل شوی رژیم ډېر ژر له منځه وړل کیږي او که چیرې په افغانستان کې پاتی کیږي، نو افغانان تر پایه د یرغلګرو قواوو او د دوی د تحمیل شوي رژیم پرضد جهاد ته دوام ورکوي . په طرحه کې « ملي روغې جوړې » ته په اهدافو کې ځای ورکول خو دا معنی لري چې روسان له افغانستان څخه د وتلو نیست نه لري ، د خپل ځان او په کابل کې د خپل مزدور رژیم پرضد جګړه یوه اوږده عملیه ګڼي : ملي روغه د خلکو د اذهانو د تیرایستلو لپاره د وسیلې په توګه استعمالوي او له دې طرحې څخه داسې څرګندیږي ، لکه چې روسانو د دغه پوچ شعار تر پردې لاندې خاینه اوږد جنګ او د ملي روغې جوړې د اوږدې عملیې لپاره چمتو کړي دي .

دویمه پوښتنه دا رامنځ ته کیږي چې آیا روسي او د روسانو ټاکلي قانون پوهان د آتي او اوږدو اهدافو ترمنځ توپیر نشي کولای ؟ که دوی د ملي روغې جوړې غوندې آتي مسالې ته د اساسي قانون په طرحه کې ځای ورکولای شي ، نو بیا خو په سلګونو داسې نورې آتي مسالې شته چې روسان باید دغو ټولو مسالو ته په دغو اهدافو کې ځای ورکړی وای . له دغو مسالو څخه دلته د مثال په توګه یوه وړاندې کیږي ، مثلاً : « په افغانستان کې د ټولو غذایي موادو نرخونه د آسمان سره خبرې کوي ، رژیم غواړي چې دغه پورته نرخونه له آسمان څخه زمکې ته راکښته کړي او د زمکې د انسانانو سره خبرې وکړي » .

د طرحې په لومړۍ ماده کې راغلي دي : « د افغانستان دموکراتیک جمهوریت خپلواک واحد او نه تجزیه کیدونکی دولت دی ، په خپل قلمرو باندې واکمن دی » .

د سیاست پوهانو په نظر د هر خپلواک دولت په سر کې ولاړ سیاسي مشرتابه د هیواد دننه اوډ باندې په ټولو سیاسي ، نظامي او ټولنیزو چارو کې بشپړ حاکمیت لري . د هیواد دننه ټول دولتي او خصوصي ارګانونه او افراد د دولت د مشرتابه د قانوني حکم تابع وي او دغه خپلواک مشرتوب له ټولو باندنیو هیوادونو سره خپل ټول روابط په مساوي ډول چلوي . په پورتنۍ ماده کې د خپلواک دولت مفهوم یوازې د روسانو د کمونستي ادبیاتو په اساس تعریف شوی دی . د دغو ادبیاتو له مخې هغه دولت چې د خپلو ملي ګټو په بنسټ ولاړ واقعي داخلي او خارجي سیاست چلوي دغه ډول رژیم بیا د روسي پروپاګندۍ د لوی ماشین له خوا د مرتجع ، بورژوا ، فیوډال ، تنګ نظره او د امپریالیزم د نماینده په نومونو غندل کیږي . برعکس هغه ملتونه ( لکه د مرکزي آسیا ، بالتیك او نور ) د روسیې د امپراتورۍ برخه کیږي ، یا د روسانو د سره پوځ په واسطه په وچ زور رالاندې کیږي ( لکه ختیز یورپ او نور ) او یا د افغانستان د خلق - پرچم غوندې خپل ملي پت ملي ناموس او ملي شتمنې « مشر ورور » شوروي اتحاد ته د سوغات په توګه ورکوي او مشر ورور شوروي اتحاد په مقابل کې له هر څه څخه آزاد تیریږي ، نو یوازې په دې صورت کې د روسانو ادبیات دغه ډول هیوادونه ، خپلواک ، مستقل ، سرلوړي ، سربلند او مترقي په القابو نمانځي .

د آلمان نامتو معاصر فیلسوف هربرت مارکوزه وایي : « خلك فکر کوي چې لویه بې شرمي دا ده چې یوه سنځه دې د ښار په ځلور لارې کې ودریږي او ځان دې لوڅ کړي اما زما په نظر د دغې بې شرمۍ په پرتله لویه بې شرمي دا ده چې د یو هیواد مشر دې په لار کې ودریږي او په خپل لاس دې د خپل هیواد په ضد خارجي فاتح جنرال ته د ګلو امیل ور په غاړه کړي » . افغانستان ته په سلګونو زره سور یرغلګر

پوځ راغلی دی او ټول هیواد یې سور اور ګرځولی دی . د افغانانو مرګ ژوبلې په مقابلی کې د خلق - پرچم مشران فاتح روسي جنرالانو ته د ګلو امیلونه ور په غاړه کوي ، واخان ورته بخښي ، د روسانو له مشوری پرته یو ګام نه اخلي، او په دې هڅه کې دي چې «مشر ورور» ته ټول افغانستان سوغات ورکړي بیا هم دوی له جامو سره په رنړو سترګو ننوزي او خپل رژیم خپلواك او په خپل قلمرو باندې واکمن ګڼي.

د طرحې په دوېمه ماده کې د اسلام د مقدس دین په باره کې راغلي دي ، « د افغانستان دین د اسلام مقدس دین دی » .

په پورتنۍ ماده کې د افغانستان د رسمي دین یا د افغانستان د خلکو د دین له اصطلاح څخه په ډېر مهارت ډډه شوې ده . دوی د اسلام مقدس دین د افغانستان په جغرافیایي مشخصاتو پورې تړلی دی . برعکس دین یوه تعبدي پدیده ده او هر دین خپل مشخص پیروان لري او دغه پیروان باشعوره ژوندي مخلوق وي ، نه مړه خاوره او کاڼي بوټي . هر څوك په دې پوهېږي چې افغانستان په جغرافیایي لحاظ او په افغانستان کې اوسیدونکي ژوندی مخلوق دوه جلا شیان دي ، چې یو ته هیواد او بل ته خلك یا اولس وایي . دین جغرافیایي مشخصاتو ته منسوبول داسې معنی لري،لکه چې څوك دا ووایي د افغانستان تولید یا د افغانستان اقلیم .

د افغانستان د رسمي دین یا د افغانستان د خلکو د دین د اصطلاح لهاستعمال څخه ولې ډډه شوې ده ؟ ځواب یې څرګند دی . د دواړو اصطلاحګانو د استعمال په صورت کې د خلق - پرچم ګوند غبري د اسلام د مقدس دین په واقعي پیروی مقید کیږي . ځکه چې د رسمیت په لحاظ دغه دله ځان د افغانستان رسمي واکمنه دله ګڼي او د خلکو د دین د اصطلاح له امله دوی د افغانستان د خلکو په جمله کې

دلايل او د دغو دوارو اصطلاحگانو د استعمال په صورت کې دوی مکلف کيدل چې په رسمي يا د خلکو په جمله کې د اسلام د مقدس دين د پيروی عملي ثبوت ورکړي او د افغانستان ټولې دولتي چارې د اسلام د مقدس دين په اساساتو وچلوي . له بلې خوا په کمونستي ادبياتو کې ماده او ايډيا ( معنی ) دوه جلا او نه پخلا کيدونکي مفاهيم دي . د مادي پيروان ( ماترياليستان ) د مادي لهوجود پرته نور هيڅ نه مني او دوی ټول مذهبي عقايد ، لکه په خدای ، پيغمبر ، ملايکو او آسماني کتابونو ايمان درلودلو ته تيار نه دي او هر مذهب ته د خلکو د ډيره کيدو د ( اپيم ) نوم ورکوي . د اسلام د مقدس دين اصول د معنی په اساساتو ولاړ دي . آيا دا کيدای شي چې د مادي پيروان دې په هغه اسلامي اصولو ، چې دوی ورته ( توهمات او اپيم ) وايي رښتينی عمل وکړي ؟ نه هيڅکله نه .

د ۱۹۱۷ ع کال د اکتوبر له پېښې نه تراوسه د شوروي اتحاد له سياسي کړنلارې څخه څرګنديږي ، څه وخت چې د شوروي دولت کمزوری و ، يا د خلکو د مذهبي عکس العمل سره مخامخ شوی دی او يا يې د جګړو په دوران کې د خلکو مرستو ته اړتيا پيدا شوې ده ، يوازې د ضعف په صورت کې د دغه هيواد کمونست ګوند په تاکتيکي لحاظ خلکو ته د مذهبي امتيازاتو په ورکولو قايل شوی دي . اما کله چې دولت قوي شوی او يا يې د خلکو مرستو ته ضرورت نه درلود ، نو د قوت په صورت کې د ګوند او دولت ټولو اورګانونو د مذهب له منځه وړلو او د کمونيزم د خپريدو لپاره فعاليتونه زيات کړي او په ټولو مذهبي فعاليتونو رسمي بنديزونه لګولي دي . په همدې ډول د ثور د خونړی کودتا له پيل څخه تراوسه پورې د خلق – پرچم ډلې د مادي ايډيالوژی کمونيزم د خپريدو په هڅه ده افغانستان د مسلمان ملت په

ضد د جګړې اعلان وکړ . سره له دې چې د کفر او ایمان په جګړه کې په سلګونو زره افغانانو شهیدان او په ملیونونو مهاجر شول ، مګر د افغانستان مسلمان ملت د روسي یرغلګرو او د هغوی د تحمیل شوي رژیم په مقابل کې د پولادي غره په څېر ودرید دښمن ته یې داسې کلک ګوزارونه ورکړل چې واروپار یې ورځخه خطا کړ . کله چې روسان او د هغوی لاسپوځي د جګړې په ډګر کې له خپل بریالیتوب څخه ناامید شوي ، نو اوس دغه ضعیف دښمن خپلې کړنلارې ته محض سیاسي تغییر ورکړی دی او غواړي چې د مذهبي امتیاز د شعارونو تر پردې لاندې د جګړې د ډګر په ځای سیاسي ګټه ترلاسه کړي . اوس د روسانو په مرسته د کابل رژیم له خوا د افغانستان د ځوان او زاړه نسل لپاره د روسانو او کابل رژیم تاکتیکي پالیسي په دوو برخو ویشل شوې ده :

لومړی : د ثور د کودتا راهیسې په ټولو تعلیمي مؤسسو کې چې ځوان نسل پکې راټول شوی دی ؛ له لومړني ښوونځي څخه تر پوهنتون پورې ټول تعلیمي نصاب په کمونستي اساساتو عیار شوی . زموږ د هیواد معاصر تاریخ هم د ۱۹۱۷ کال د اکتوبر له پیښې را په دې خوا تدریس کیږي ، د ټولو تدریسي موادو په واسطه ځوان نسل داسې تلقینوي چې ګوندې افغاني ټولنې په سیاسي ، اجتماعي ، کلتوري ، اقتصادي اونظامي لحاظ د شوروي مرستې په اساس پرمختګ کړی دی او د شوروي د مرستو نه مخکې په افغاني ټولنه کې هیڅ شی نه وو . دوی ځوان نسل ته افغاني تاریخ او ټولنه د یوې وروسته پاتې ټولنې په نامه او د افغانستان نومیالي ( مذهبي او ملي شخصیتونه ) ورته بد معرفي کوي او د پرمختګ لپاره ورته یوازې د شوروي کمونستي سیستم د یو ماډل په توګه په مفرو[illegible] ورځای کوي . برسیره پردې په

کورنۍ د غړو ترمنځ ترکه کیږي او په عمومي ډول په افغاني ټولنه کې ترکه د ښځو او لونو په ځای د زامنو ترمنځ وي . د مثال په توګه که یو سړي زر جریبه ځمکه لري او د ډیرو ښځو څخه لس زامن لري نو د ترکې په صورت کې د دغه سړي هر یو زوی ته سل جریبه رسیږي او د هغه د ګمسو پورې دغه ځمکه دومره ویشل کیږي چې په دویم یا په دریم پښت کې د دغه خان یا د کمونستانو په اصطلاح د فیوډال له اولادې څخه د وچې خانان جوړیږي . له بلې خوا په افغاني ټولنه کې شخصي او خصوصي ملکیت قانوني تحفظ نه درلود اونه د دې ټولنې په سیاسي سیستم کې خان ، بای ، او ارباب ته پخپله سیمه کې د سیاسي ، اقتصادي ، قانوني او اداري چارو د چلولو واك ورکړل شوی و ، بلکه د ځمکې لرونکي حیثیت ، وقار او قدرت دربار ته په وفا دارۍ پورې تړل شوی و . د وفا دارۍ په صورت کې هغه له خپلې ځمکې اونورو امتیازونو څخه ګټه اخیستله او د هغه په وفا دارۍ باندې د شك په صورت کې دربار د هغه ځمکه اونور جایداد ضبطاوه او هغه او د هغه د کورنۍ غړو ته یې مختلفې جزاګانې ورکولې . د افغاني ټولنې د تاریخ په حواله دربار ډیر قوي قومي مشران محض د ډار په وجه بندیان کړي یا یې وژلي او یا یې نورو سیمو ته تبعید کړي دي . دربار سیاسي قدرت هغه چاته ورکاوه چې هغه دغه سیاسي قدرت او شخصیت د دربار مهرباني ګڼله او دربار ورځنی سیاسي قدرت په آسانه واپس اخیستلای شو . په بل عبارت سیاسي قدرت اوشخصیت یې هغه چاته ورکاوه چا چې تر شا قومي یا سیمه ییز ملاتړ او قوت نه درلود .

د یورپ په فیوډالي دوره کې قبیله یي روابط بیخي له منځه تللي وو او دغه روابط پوازې د فیوډال او بزګرو ترمنځ وو او د اروپا د فیوډالیزم د دورې د بزګرانو برعکس د افغاني ټولنې بزګران مستقل

کابل کې د روسانو مزدور رژیم هرکال په زرګونو ماشومان او ځوانان شوروي اتحاد او نورو کمونستي هیوادونو ته د زده کړې په پلمه لیږي ؛ هلته ځوان نسل د کمونیزم په قالب کې اچول کیږي چې د کمونستانو په اصطلاح ورځخه « نوی انسان » او د افغانانو په اصطلاح ورځخه « نوکر » وطن پلورونکي او بې ماهیته انسان جوړ کړي .

دویم : له هر راز وحشت سره سره روس او خلق - پرچم دې نتیجې ته ورسیدل چې په وچ زور د افغانانو محکومیت له حده زیات ګران کار دی ، نو دوی اړ شول چې د افغانانو د زوړ نسل او د اسلامي نړۍ د تیراېستلو په هڅه یې لومړی د شؤون اسلامي ریاست جوړ کړ او بیا دغه ریاست یې د وزارت مقام ته لوړ کړ . دا د افغانستان په تاریخ کې لومړی ځل دی چې مذهب ته بلشویکي ( کمونستي ) رنګ ورکول کیږي او د لومړي ځل لپاره د شؤون اسلامی وزارت د نوي کادر په واسطه د دولت او ګوند په خدمت کې د مذهب د استخدام هڅه پیل کوي . د اسلامي شؤونو وزارت لاندېنۍ دندې په غاړه لري :

الف : د وزارت ټوله کلنۍ بودجه د دولت د امنیت وزارت ( خاد ) له خوا تمویل کیږي . د اسلامي شؤونو وزارت نوی کادر روزي ، د جوماتونو او د تعلیمي مؤسسو مذهبي ښوونکو ته معاش ورکوي ، د مقدسو ځایونو حفاظت کوي او شوروي اتحاد او په مشخص ډول مرکزي آسیا ته هیئتونه لیږي او له دغه ځای ځخه میلمانه راغواړي .

ب : د دغه وزارت له خوا نوي روزل شوي ملا ډوله کادر مکلف دی چې د کې ، جي ، بي او خاد په دستور شوروي اتحاد د اسلام حامي ، د خلق - پرچم غړي پاخه مسلمانان او د شوروي او کابل رژیمونو هر عمل ته اسلامي رنګ ورکړي ، دوی مکلف دي چې په خپل تبلیغ کې د جهاد ، روسي یرغل ، له هیواد سره د مینې په هکله یو ټکی یادونه هم

ونه کړي ، بلکه اسلام داسې تعبير او تشريح کړي چې ګوندی د اسلام او سوشليزم په اساساتو کې هيڅ توپير نشته .

ج : د اسلامي شؤونو د وزارت له خوا استخدام شوي اشخاص چې په اصطلاح د مذهب د سپينو جامو تر پردې لاندې خپله ارواح يې په شيطان خرڅه کړې ده ، د کي ، جي ، بي او خاد په دستور په جوماتونو ، غونډو او کنفرانسونو کې د مجاهدينو په ضد تبليغ کوي ، د مجاهدو ډلو په صفونو کې ورننوزي چې د مجاهدينو ترمنځ ګوډي پيدا کړي او رښتيني مجاهد ګروپونه او اشخاص په يو او بل نوم تخريب کړي .

لکه چې مخکې ورته اشاره وشوه ، د مذهب په برخه کې د کابل د رژيم دريځ د شوروي اتحاد له مذهبي سياست څخه تقليد دی . دوی غواړي چې مذهب څنګه د کمونستي رژيم په خدمت کې استخدام کړي او له استخدام شويو مذهبونو څخه يوازې هغه کار واخلي چې دوی يې ورځنی غواړي . په کمونستي رژيم کې د کمونستي ايډيالوژی له تبليغ څخه پرته بله هيڅ ايډيالوژي دتبليغ حق او آزادي نه لري ، بلکې هغه شخص يا ډله چې د مذهبي او يا بلې سياسي نظريې لپاره فعاليت کوي د دولت د امنيتي ارګانونو له خوا د دولت او ايډيالوژی ضد په بيلا بيلو تورونو محاکمه کيږي او جزا مومي .

د نورو کمونستي هيوادونو د قوانينو غوندې په کابل کې د روسانو مزدور رژيم هم په دغه طرحه کې د ځلوبښتمې مادې په دويم فصل کې په مذهبي آزادۍ بنديز لګوي وايي : « هيڅ يو تبعه حق نه لري چې له دين څخه د ملي ضد ، وګړنيزو ضد تبليغاتو د دښمنۍ د پيدا کولو او د افغانستان د دموکراتيک جمهوريت د ګټو پرخلاف د نورو عملونو د کولو په مقصد استفاده وکړي » .

په دې ماده کې د کابل رژيم يوازې ځان ته حق ورکوي ، که يو

شخص یا ډله د مذهبي عقایدو تبلیغ وکړي هغوی « د ملي ضد ، وګړنیز ضد ، دښمن او د افغانستان د جمهوریت د ګټو پرخلاف ، په تورونو نیولي او محاکمه کولای شي » .

د سیاسي ګوندونو په برخه کې د طرحې په څلورمه ماده کې راغلي دي : « د افغانستان په دموکراتیك جمهوریت کې سیاسي ګوندونه جوړیدای شي په دې شرط چې د ګوند مرامنامه ، اساسنامه او فعالیت د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت په اساسي قانون اونورو قوانینو کې د مندرجو ارزښتونو پرخلاف نه وي » .

د دې مادې اصلي محتوی د تحلیل نه مخکې په پارلماني جمهوریت او کمونستي رژیم کې د ګوندونو په ترکیب او فعالیت رڼا اچول ضروري دي .

په پارلماني جمهوریت کې د یو ګوند په ځای څو ګوندونه موجود وي . هر ګوند د خپلې مشخصې مرامنامې او اساسنامې په اساس خپله مشخصه سیاسي کرښلار پرمخ بیایي او هر ګوند مکلف دی چې د خپل هیواد د اتباعو رایې ته مراجعه وکړي ، خلکو ته خپله پالیسي تشریح کړي او له خلکو څخه د ګوند د نماینده ګانو لپاره رایې ترلاسه کړي . خلك فیصله کوي چې کوم ګوند د اکثریت په نوم پارلمان ته ولیږي او په پارلمان کې د اکثریت ګوند په نوم مقننه او اجرائیه قوه جوړه کړي . که چیرې یو ګوند اکثریت ترلاسه نه کړي بیا دوه یا څو ګوندونه سره یوځای کیږي او ائتلافي حکومت تشکیلوي ، کوم ګوند چې ډیرې رایې اخلي یا له نورو ګوندونو سره ائتلاف نه کوي دغه وړوکی ګوند یا ګوندونه د پارلمان دننه د مخالف ګوند رول لوبوي . مخالف ګوند د واکمن ګوند ټول فعالیتونه تر دقیقې څارنې لاندې ساتي او د حکومت په فعالیتونو له ارزیابۍ وروسته انتقادونه کوي . حکومتي ګوند دې لپاره چې په راتلونکو انتخاباتو کې بیا د خلکو ملاتړ او په پارلمان

کې ډیرې چوکۍ ترلاسه کړي زیار باسي چې له خلکو سره کړې وعدې ترسره کړي . همدا شان مخالف گوند په راتلونکو انتخاباتو کې د خپل بریالیتوب د چانس د زیاتوالي په هڅه په واکمن گوند د دې لپاره انتقاد کوي چې د خپل گوند پروگرامونه د اولس د هوسا ژوند د تضمین په حیث په خلکو ومني ، واکمن گوند ته ماتې ورکړي او په خپله سیاسي قدرت ترلاسه کړي . په پارلماني جمهوریت کې یو گوند د تل لپاره نه اکثریت وي او نه اقلیت ، بلکه اکثریت په اقلیت بدلیږي او اقلیت په اکثریت . په پارلماني جمهوریت کې اصلي قدرت ورکوونکی مرجع خلك دي او یوازې خلك فیصله کوي چې کوم گوند دې د دوی د رایې په ملاتړ په دوی حکومت وکړي او یوازې خلك دې عملیې ته دوام ورکوي .

د پارلماني جمهوریت برعکس په کمونستي رژیم کې د دولت په درې اورگانونو اجرائیه ، مقننه او عدلیه قواوو کې بیلتون نشته او کمونستان دغه تفکیك د بورژوا نظریې په نوم غندي ، او همدارنگه په کمونستي رژیم کې ټول سیاسي قدرت د کارگرانو د دکتاتورۍ د نماینده په نوم یوازې په کمونست گوند کې متمرکزوي او له دغه واحد گوند پرته نورو گوندونو ته د سیاسي فعالیت هیڅ اجازه نه ورکول کیږي . د هیواد دننه او د باندې چارې یوازې کمونست گوند چلوي او دغه گوند د یوې نوې وظیفې په توگه هر څه په خپله اداره کوي . په کمونستي رژیم کې د خلکو عمومي رایې ته اهمیت نه ورکول کیږي او د دولت د ټولو ا رگانونو د چلولو لپاره یوازې گوندي غړي د انتخاب لپاره وړاندې کیږي چې په واقعیت کې دا ډول انتخابات محض یوه نمایشي اړخ لري او خلکو ته ترمخه معلوم وي چې په دغه نمایشي انتخاباتو کې د کمونست گوند ملاتړ د کوم کاندید تر شا دی او د دغه ملاتړ په قوت کوم کاندید ډیرې رایې اخیستلای شي .

په ټول کمونستي بلاك کې يوازې په پولينډ کې نورو گوندونو ته د فعاليت اجازه ورکول شوې ده ، مگر په قانوني لحاظ د دغه گوندونو د فعاليت ساحه محدوده کړای شوې ده . د دې گوندونو مرامنامې او اساسنامې د پولينډ د کمونست گوند له خوا تصويب شوي دي ، دغه گوندونه د کمونست گوند د مشرتابه او د سوسياليستي دولت په داخلي او خارجي سياست باندې د انتقاد له حق څخه بې برخې کړای شوي دي .

ښايي چې د طرحې پورتنۍ ماده د پولينډ له اساسي قانون څخه تقليد وي . د کابل رژيم د مشرانو له وينا څخه څرگنديږي چې دوی د بزگرانو ، ملي او ملي بورژوا په نومونو ځينې گوندونه منځ ته راوړي او د خلکو د تيرايستلو په هڅه په دغه جوړو شويو گوندونو باندې د مستقلو او آزادو گوندونو ټاپه هم لگوي . خو د افغانستان خلك په دې پوهيږي چې دغه تيرايستونکې هڅه د دوی د پلار وطنې جبهې ، قومي جرگو ، سيمه ييزو شوراگانو انتخاب ، ملي روغې جوړې او د مخالفو گوندونو سره د ائتلافي حکومت د جوړېدو غونډې يو بل ناکام کوښښ دی . د افغانستان خلك په دې هم پوهيږي چې دغه ډول گوندونه د خلکو د تيرايستلو په هڅه د خلق - پرچم گوند له خوا جوړيږي او په واقعيت کې هيڅ ډول استقلال او آزادي نه لري او د دې جوړ شويو گوندونو فعاليتونه به د کابل د رژيم په خدمت کې وي

په پورتنۍ ماده کې د کابل رژيم د دې گوندونو د فعاليتونو د محدوديت په برخه کې په خپله اعتراف کوي چې دغه ډول گوندونه هله جوړيدای او فعاليت کولای شي چې د دغه گوندونو اساسنامې ، مرامنامې او فعاليت د خلق - پرچم خلاف نه وي . په بل عبارت دغه گوندونه هله جوړيدای شي چې مرامنامې او اساسنامې ورته د خلق - پرچم گوند ليکلی وي او د دغه گوند له خوا ورته د فعاليت ساحه

ټاکل شوي وي ، چې دوی د خلق - پرچم لپاره په کومو ساحو کې خدمت وکړي .

د طرحې په څلورم فصل کې له پنځه شپیتمې مادې څخه تر نه شپیتمې مادې پورې د لویې جرګې موضوع مطرح شوې ده چې د کابل رژیم د دغو مادو په اساس د ۱۳٦٦ کال د جدي په اوومه نیټه په کابل کې د لویې جرګې په نوم غونډه دایره کړه .

لویه جرګه د افغانستان د اولس یوه ډېره پخوانۍ عنعنوي سیاسي مؤسسه ده . د تاریخ په اوږدو کې لویه جرګه په دوو حالاتو کې دایر شوې ده : کله چې افغانستان د خارجي یرغل سره مخامخ شوی دی ، د دې خاورې واقعي زامن سره راټول شوي دي او د خارجي یرغل د دفعه کولو لپاره یې خپل مشرتابه ټاکلی دی . په دغو لویو جرګو کې بیلا بیلو قومونو مشرانو ګډون کړی دی او د خلکو د اعتماد وړ نماینده ګانو مشرتابه ته صلاحیت ورکړی دی چې د یرغلګرو پرضد لارښوونې وکړي . کله چې خلکو خپل مشرتابه ټاکلی بیا خلك د دغه مشرتابه تر شا یو موټی ودریدلی دی او ترهغه یې قربانۍ ورکړي ، څو چې دښمن یې له خپلې خاورې ایستلی دی . دغه ډول ډېرې لویې جرګې شوي دي اما دلته د هغو له جملې څخه د اولسمې او اتلسمې پیړیو دوه لویې جرګې د نمونې په ډول وړاندې کیږي : په اوه لسمه پیړۍ کې د بیلا بیلو قومونو مشران راټول شول چې افغانستان د ایران د صفوي دولت له تسلط څخه خلاص کړي . یوازې خلکو حاجي میرویس خان ته صلاحیت ورکړ . هغه د صفویانو دولت پرضد د خلکو په مرسته خپلې مبارزې ته دوام ورکړ او افغانستان یې د صفویانو له تسط څخه خلاص کړ . همدا شان په اتلسمه پیړۍ کې لوی احمدشاه بابا د نادر افشار له مړینې څخه وروسته کندهار ته راغی او په کندهار کې د افغانستان د خپلواکۍ د اعلان او مشرتابه د ټاکلو لپاره لویه جرګه جوړه شوه او د

څو ورځو له غونډو او مشورو څخه وروسته احمد شاه بابا د افغانستان د مشر په توگه وټاکل شو . لوی احمد شاه بابا افغانستان یو خپلواک او مستقل هیواد اعلان کړ او د خپل وخت د افغانستان سیاسي پولې یې ډیرې پراخه کړې .

دویم ډول لویه جرگه هغه وخت دایر شوې ده څه وخت چې افغانستان د کومې ملي یا بین المللي کشالې سره مخامخ شوی دی . په داسې حالت کې د افغانستان خپلواک او مستقل مشر د لویې جرگې د دایریدو لپاره فرمان صادر کړی او د لویې جرگې انتخابي او انتصابي دواړه بڼې درلودې . د افغانستان په ټولو حوزو کې به د خلکو له خوا د لویې جرگې وکیلان انتخابیدل او د افغانستان مشرتابه به هم د بیلا بیلو قشرونو څخه پوه او مجرب اشخاص د لویې جرگې لپاره په فرمان انتصابول . په دغه ډول لویو جرگو کې برخه اخیستونکو د کشالې په هر اړخ باندې د آزاد بحث حق درلود او هر غړي به په آزاد ډول د خپلې نظریې څرگندونه کوله .

دلته پوښتنه دا ده ، چې آیا د روسانو له خوا په افغانستان باندې په زور تپل شوی رژیم د لویې جرگې عنعنوي تقدس ساتلای شي او یا د لویې جرگې د دایریدو قانوني صلاحیت لري او که نه ؟

په ۱۸۳۹ ع کال کې شاه شجاع د انگریزانو له پوځ سره یوځای د کابل په ښار راننووت او د ښار بالاحصار ته ولاړ . د افغانستان ننگیالی اولس د خارجي قدرت د گوډاگي مشر زغم نه درلود ، د قوم مشران سره جرگه شول او پریکړه یې وکړه چې د شاه شجاع او انگریزانو پرضد د غزا اعلان وکړي . په دې وخت کې د شاه شجاع ځینو درباریانو هغه ته مشوره ورکړه چې « ته خو د لوی احمد شاه لمسی او د تیمورشاه زوی او افغانستان د تاج او تخت اصلي وارث یې ، ته حق لري چې لویه جرگه راوغواړې او په دغه لویه جرگه کې د خپلې پاچاهۍ اعلان وکړې او د

خلکو ملاتړ ترلاسه کړي » . شاه شجاع د دې مشورې په اورېدو د لږ وخت لپاره غلی شو او د لږ څه فکر وروسته یې په ځواب کې وویل :
« افغانان پوهیږي چې زه د لوی احمد شاه لمسی ، د تیمورشاه زوی او د افغانستان د تاج او تخت وارث یم ، خو تاسې په دې نه پوهیږئ چې افغانان ولی زما مخالف دي . زه د انګریزانو له پوځ سره راغلی یم او هر څوك چې د باندني قدرت په قوت په افغانانو حکومت کول غواړي افغانان ترینه کرکه او نفرت کوي . لویه جرګه د افغانانو تاریخي عنعنه ده او زه نه غواړم چې د لویې جرګې عنعنوي تقدس مات کړم » .
سره له دې چې شاه شجاع د انګریزانو د پوځ سره د یو ګوډاګي په توګه افغانستان ته راوستل شوی و ، خو هغه شهزاده و او د خپلې ټولنې د عنعنې په درناوښت پوهیده او دا جرآت یې ونه کړ چې دغه تاریخي عنعنه تر پښو لاندې کړي او نه وربادې انګریزانو فشار واچوه چې د افغاني عنعنې خلاف دې لویه جرګه دایره کړي . انګریزانو څو ځله په افغانستان یرغل وکړ ، مګر دغه دښمن د افغانانو په مذهبي او عنعنوي مسایلو کې ګوتې نه وهې ، بلکه د انګریزانو ډیرو لیکوالو او عسکري صاحب منصبانو د افغانانو میړانه ، جرآت ، میلمه پالنه او د هیواد سره مینه او نور ملي ارزښتونه په ډیرو اوچتو الفاظو ستایلې دي . د انګریزانو برعکس روسان په یوه بین المللی کمونستي ایډیالوژۍ سنبال دي او د دې ایډیالوژۍ پیروان روسان او وړوکی اقلیت افغانان دواړه د افغاني عنعنو او ارزښتونو سره لوبې کولې . او لویه جرګه په داسې وخت کې دایروي چې د روسانو سور پوځ په افغانستان کې پروت دی ، خلقیان او پرچمیان د شوروي مشاورینو په لاس کې د شطرنج د مهرو پرته بل هیڅ حیثیت نه لري ، د دې خاورې په سلو کې نه نوي خلك په مستقیمه یا غیر مستقیمه توګه د سور پوځ پرضد په

خونړۍ جګړه بوخت دي ، په لکونو ښځې او ماشومان ، ځوانان او زاړه شهیدان شوي دي او په ملیونونو لهخپل هیواد څخه مهاجر شوي دي .
اوس ټولې نړۍ ته ثابته شوې ده چې د افغانستان په سلو کې اتیا خاوره آزاده شوې او د مجاهدینو په لاس کې ده . آیا دغه مزدور رژیم دا دعوه کولای شي چې د دوی په لویه جرګه کې ، لکه د پخوانیو لویو جرګو غونډې د افغانستان د هر ګوټ نماینده ګان ګډون لري . یا د افغانستان د خلکو ملاتړ یې ترشا دی . دوی له لومړۍ ورځې څخه د خلکو له خوا مسترد شوي دي او د دوی د لویو جرګو یا وړوکو پریکړه هم د افغانستان خلکو ته د منلو وړ نه دی . دوی ډیرې جرګې جوړې کړې او فیصلې پکې وشوې ، اما یوه فیصله یې هم ونه منل شوه .
ښایي چې په دغه نمایشي جرګه کې دوی نجیب د جمهور رئیس په حیث وټاکي ، دغې نمایشي طرحې ته د اساسي قانون نوم ورکړي اونورې فیصلې هم وکړي ، مګر په یو هیواد کې چې حکومت قانوني حیثیت نه لري ، نو فیصلې یې څه اهمیت لري ؟ شاید چې د دې نمایشي لویې جرګې فیصلې ، لکه د دوی د ډزبند ائتلافي حکومت د جوړیدو ، د ملي روغې جوړې او نورو فیصلو په څیر تش د یو څو پوچو شعارونو پورې محدود پاتې شي او بالاخره په پای کې به د افغانانو دا خبره مني چې هیڅ یرغلګر قدرت په افغانانو په وچ زور کلي نه دي کړي او دا د مجاهدو افغانانو حق دی چې دوی خپله لویه جرګه دایره کړي او د خپل سرنوشت په برخه کې خپله فیصله صادره کړي ، ځکه چې دوی اکثریت دي ، دوی د افغانستان رښتیني زامن دي او یوازې د دوی فیصلې به د خلکو د تایید او د منلو وړ وي او بس .

به هر رنگی که میخواهی جامه میپوش
من از طـرز خـرامت می شناسم

# په افغانستان کې د قومونو مسأله

ټولو ته څرگنده ده چې افغانستان د مختلفو قومونو ، قبایلو د اوسیدو ټاټوبی دی . په دې لیکنه کی زما د څیړنې موضوع د کودتا نه مخکې په افغانستان کې د مختلفو اولسونو په ژوند ، ده‌کودتا څخه وروسته په دې هکله د خلق - پرچم او شورویانو ( جلا یې کړه او حکومت وریاندې وکړه ) پالیسي ، په تیر جهاد کې د مختلفو قبایلو ونډه او په آینده کې د قومونو ترمنځ اړیکو ته منحصره ده . ځینې پوهان د « ملیتونو » اصطلاح د شوروي اتحاد د کمونستي سیاست زیږنده گڼي او د دې اصطلاح سره متفق نه دي . زه د دې اصطلاحگانو په تعریف بحث نه کوم ، بلکې پورتنیو موضوعگانو ته په ډیر لنډ ډول اشاره کول غواړم . د دې لیکنې اصلي هدف دا دی چې افغانان ترځپله

هویت اوشخصیت لري . دوی د لویدیزو ټولنو د بزګرانو غوندې نه په ځمکې پورې تړل شوي دي او نه د خان ، بای او ارباب خصوصي ملکیت ګڼل کیږي . دوی پخپله خوښه بزګري کوي او پخپله خوښه بزګري پریږدي او په نورو کسبونو لاس پورې کوي .

په لنډه توګه ویلی شو چې د افغانستان د رواني کشالې اساسي عامل دغه افاقي ځیرنه ده او د دې ځیرنې په وجه په ځینو افغانانو او په مشخص ډول په ځینو ځوانانو کې د بیګانه ګۍ عملیې وده وکړه اوهم د دې عملیې په نتیجه کې زمونږ ملي تراژیدي شروع شوه .

## ټولنیز ارزښتونه :

د پوهانو په نظر بنیادم طبیعي او اجتماعي دواړه خصوصیات لري او د هغه ټولنیزو نورمونو او ارزښتونو هم د هغه له طبیعي غریزو او غوښتنو او اجتماعي مشخصاتو څخه سرچینه اخیستې ده . بنیادم خپلې ډیرې طبیعي غریزې او غوښتنې د ټولنې د اجتماعي ارزښتونو ، دودونو او عنعنو تر کنترول لاندې راوستلي دي او د هرې ټولنې غړو وګړو ورته له خپلو ځانګړو شرایطو سره سم د ټولنې د اجتماعي مؤسسو په چوکاټ کې مجرا ورکړې ده ، لکه څنګه چې بنیادم د اجتماعي خصوصیاتو په درلودلو او انکشاف په برکت د ارتقا د اوږدې پروسې په ډګر کې نور ژوي ترشا پریښوولي همدغه شان مختلفې انساني ټولنې د خپلو مادي او معنوي شرایطو اوخصوصیاتو په لحاظ د ارتقا له مختلفو پړاوونو څخه تیرې شوې دي او د انسانانو د طبیعي غریزو او غوښتنو د ورته والي اومشابهت باوجود د هرې ټولنې ځانګړو مادي او معنوي مشخصاتو او شرایطو د غې ټولنې ته له نورو انساني ټولنو څخه جلا او مشخصه بڼه ورکړې ده .

وسه ځانونه د افغانستان په مسایلو پوه کړي او په راتلونکی کې د مسایلو د حل لپاره مثبتې لارې پیدا کړي .

تاریخ پوهان ، افغانستان د فتوحاتو لویه لار ، د فتوحاتو دروازه او د ویلې کیدو د لوښي په نومونو بللی دی ، د فتوحاتو لویه لار ورته ځکه وایي چې د تاریخ په اوږدو کې د آریایي قبیلو نه نیولې تر سکندر او مغلو پورې فاتح لښکرې له دې هیواد څخه په تیریدو سره هند ، مرکزي آسیا او ایران ته تللي دي . په بل عبارت دا هیواد ځان ته یو ځانګړی ستراتیژیک جغرافیایي موقعیت لري . هرفاتح چې په دې هیواد کې پښې ټینګې کړي دي ، وروسته یې بیا له همدې دروازې څخه په ګټې اخیستلو سره هیوادونه نیولي دي چې د افغانستان ، هند ، ایران او مرکزي آسیا لرغونی ګډ تاریخ یې ښه ثبوت دی . له بل پلوه له پیړیو څخه را په دیخوا په افغانستان کې مختلف قومونه د یو بل ترڅنګ اوسیدلي دي . دوی د یو بل د ژوند په ډیرو اړخونو باندې متقابلې اغیزې لرلې دي ، د یو بل نه یې په ژبني او کلتوري لحاظ ډیر شیان اخیستي او خپل کړي دي چې د ټولنپوهني په اصطلاح ورته (حل کیدنه ) یا د ویلې کیدو عملیه وایي . د دې عملیې له مخې ځینو قبیلو خپلې ژبې او کلتوري مشخصات له لاسه ورکړي او د چاپیریال د اکثریت ژبه او کلتور یې خپل کړی دی .

د افغانستان قومونه او قبیلې د دې هیواد د سیاسي سرحدونو نه د باندې په ګاونډیو هیوادونو کې هم همنژاده قومونه او قبیلې لري . پښتانه د دې هیواد اکثریت تشکیلوي ، د دې قوم یو شمیر قبیلې په قبایلي سیمو او د پاکستان په صوبه سرحد او بلوچستان کې میشته دي ، تاجک ، ازبك او ترکمن په مرکزي آسیا کې د تاجکستان ، ازبکستان او ترکمنستان په نومونو جمهوریتونه لري . د بلوڅو ساحه

تر پاکستان او ایران پورې غځېدلې ده ، د نورستانیانو او پشه ئیانو کلتوري حوزه د پاکستان تر گلگیت او کشمیر پورې رسیږي ؛ هزاره له مرکزي افغانستان برسیره د پاکستان په کوټې او ایران کې هم شته دی .

د وخت په تیریدو د لوی احمد شاه ( ۱۷٤۷ - ۱۷۷۳ ) لویه امپراتوري کوچنۍ شوه . د اوسني افغانستان سیاسي جوړښت ( یا ملي دولت ) د امیر عبدالرحمن خان ( ۱۸۸۰ - ۱۹۰۱ م ) له دورې څخه پیل شوی دی . د شلمې پېړۍ تر نیمایې پورې په افغانستان کې معاصر ترانسپورټي سیستم تقریباً هیڅ نه و . ټول اولسونه په خپلو سیمو کې اوسیدل ، د هیواد زیاتې سیمې د ترکستان ، جنوبي او مشرقي په نومونو یادیدلې . د اولسونو ترمنځ تگ راتگ ډیر محدود و ، سیاسي شعور وده نه وه کړې ، افغانستان د ( وطن ) درجې ته نه و رسیدلی ، هر اولس ته یوازې خپلې سیمې د ( وطن ) مفهوم درلود ، دلته یوه خبره د یادونې وړ ده چې د افغانستان نورو قومونو یوازې پښتنو ته افغانان ویل او خپل ځانونه یې د تاجك ، ازبك ، ترکمن ، هزاره ، بلوخ ، نورستاني او نورو په نومونو یادول . ټولو ته څرگنده ده چې د تاریخ په اوږدو کې پښتون قام د تل لپاره ځان ته ( پښتون ) ویلی او د ( افغان ) نوم ورته د باندنیو له خوا ورکړل شوی دی . د لوی احمد شاه سیاسي بصیرت له دې څخه څرگندیږي چې هغه زموږ په هیواد د ( پښتونستان ) په ځای د افغانستان نوم کښیښود ، زموږ هیواد یې د یو مشخص قام نوم ته منسوب نه کړ ، بلکې هغه افغانستان ته دومره پراخه مفهوم ورکړ چې د افغانستان دننه ټول اوسیدونکي قومونه ځانونو ته ( افغانان ) ویلای شي .

د دې هیواد اولسونه په ډیر لږ تفاوت سره تر یو ډول اقتصادي او

اجتماعي شرايطو لاندې ژوند کوي په سلو کې د نه نوي نه زيات مسلمانان دي او په ځينو دورو کې ټولو ميشته اولسونو يې يو شان د مرکزي حکومت له خوا ربړونه او ستونزې ليدلي دي . په هيواد کې د ګاونډيو قومونو ترمنځ روابط عادي وو ، خپلمنځي قومي پيښې ډيرې لږې وې او ټولې کشالې د جرګو او مفاهمو له لارې فيصله کيدلې،لکه چې ورته مخکې اشاره وشوه زموږ د هيواد بشپړ اکثريت مسلمانان دي همدا علت دی چې په دې ټولنه کې د هند د نيم قارې او د نورو اسلامي هيوادوونو په شان مذهبي کړکيچونه او مخالفتونه لږ ليدلی شوي دي .

د مذهب له پلوه په دې هيوادو کې لهپيړيو راهيسې دوه اسلامي ډلې سُنيان او شيعه ګان ځنګ په ځنګ اوسيږي او تراوسه د دوی ترمنځ داسې مذهبي شخړه چې د جګړې تر سرحده رسيدلې وي منځ ته نه ده راغلې . دلته د ډيرو عواملو له جملې څخه ځينې مهم يې په لاندې ډول د يادونې وړ دي :

اول : د تاريخ په اوږدو کې سُني افغانستان او شيعه ايران ژورې تاريخي ، سياسي ، کلتوري او ژبنی اړيکې لري .

دويم : په افغانستان کې د سُنيانو اکثريت او د شيعه ګانو اقليت په دوو جلا سيمو او يا حوزو کې استوګنه نه لري ، بلکې دواړه مذهبي ډلی په مختلفو کليوالو او ښاري سيمو کې د يو بل ترڅنګ د ګاونډيانو په څير ژوند کوي ، په بل عبارت په هرځای کې چې شيعه ميشت دی هلته سُنيان هم شته چې ښه مثالونه يې د هرات ، کندهار ، کابل او مزارشريف ښارونه او د هزاره جاتو سيمه ده . ټول هزاره جات شيعه نه دی ، په خپله په هزاره قوم کې هم سُنيان شته ، سربيره پردې د هزاره جات شيعه ګانو سره نور سُنی قومونه هم يوځای پراته دي .

دريم : د لوی احمد شاه د دورې له پيل څخه قزلباشو د

افغانستان په نظامي او ملکي چارو کې مهم ځایونه لرلي دي . سربیره پردې په هغه وخت کې د ځینو نامتو شیعه ګانو لوڼې او خویندې په سُنی مشرانو او شهزادګانو واده وې . په دې لړ کې د ډیرو مثالو له جملې څخه د امیر دوست محمد خان مور یو ښه مثال دی . په دربار کې یوځای اوسیدل او د وینې ګډون د دې علت شو چې د سُني او شیعه ډلو ترمنځ مذهبي تبعیض ، کړکیچ او اختلاف له منځه ولاړ شي او په سیاسي ، اجتماعي او کلتوري ډګر کې د دواړو ډلو اړیکې سره نژدې شي .

د دویمې نړیوالې جګړې په پای کې د شاه محمود خان ( ۱۹٤٦ - ۱۹۵۳ ) د صدارت په دوره کې سیاسي ګوندونه جوړ شول ، ملي او شخصي اخبارونه خپاره شول او د نورو مختلفو پروژو د عملي کیدو لپاره هڅې پیل شوې . د محمد داؤد ( ۵۳ - ۱۹٦۳ ) د صدارت په دوره کې د هیواد مختلفو سیمو ته لویې لارې جوړې شوې ، ترانسپورټ پرمختګ وکړ ؛ د مخابرې سیستم منظم شو . له کلیوالي سیمو څخه تر لوړو زده کړو پورې تعلیمي مؤسسې منځته راغلې ، او نورې پروژې هم په کار واچول شوې . د اساسي قانون ( ٦۳ - ۱۹۷۳ ) د دموکراسۍ په دوره کې سیاسي ، اقتصادي ، اجتماعي تعلیمي ، مخابراتي ، ترانسپورټي او نورې مؤسسې زیاتې فعالې شوې.

دغو عملیو د ۱۹۷۸ کال د ثور تر کودتا پورې دوام درلود ، په دې ډول افغانستان د یو نوي ملي دولت د جوړیدو لور ته روان و چې د ثور بدمرغه کودتا د ملي دولت د جوړیدو او د هیواد د پرمختګ عملیه په مرګ ژوبلې ، مهاجرت او آواره ګۍ بدله کړه . زه دلته د اساسي قانون له دورې څخه د ملي دولت د جوړیدو په لور د پرمختګ یو څو مثالونه وړاندې کوم :

اول : په افغانستان کې دوه ځله انتخابات وشول ، په دې انتخاباتو کې قومي تعصب لرونکي ځینې وکیلان له داسې حوزو څخه انتخاب شول چې هلته د کاندید د قوم په ځای نورو قومونو اکثریت درلود.

په پارلمان کې د مختلفو قومونو نماینده گانو له یو بل سره وپیژندل چې څوك ، څوك دی . حکومت اولسي جرگې ته مسؤولیت درلود . وکیلانو په ټولو محلي ، ملي او بین المللي مسایلو آزاد بحثونه کول . د دوی نظر د راډیو او اخبارونو له لارې خلکو ته رسیده او د خپلو حوزو مسایل یې د حکومتي ارگانونو سره مطرح کول ، د خپلو حوزو د خلکو لپاره یې صحي ، تعلیمي ، زراعتي ، صنعتي او نورې پروژې غوښتلې . په دې دوره کې د وکیلانو ترمنځ دوه ډوله مثبت رقابت منځ ته راغی او د لومړي ځل لپاره حکومتي پرسونل د وکیلانو په مشوره او د خلکو په مرسته د پرمختیایي پروژو په عملي کولو پیل وکړ .

دویم : د ښوونځیو او لیسو شمیر زیات شوی و . له لیسو څخه بریالي هلکان او نجونې یوازې د کانکور له لارې په پوهنتونونو او د لوړو زده کړو په نورو تعلیمي مؤسسو کې شاملیدلې . د شاملیدو اساسي معیار تعلیمي زده کړه او استعداد و . ( د خلق - پرچم د رژیم د دورې په شان گوندي اړیکې او سفارش معیار نه گڼل کیده ) . د هیواد د مختلفو سیمو شاگردان او استادان په ټولو تعلیمي مرکزونو کې راټولیدل ، سیاسي شعور یې وده کوله . بیا وروسته دې تعلیم یافته ځوان قشر په حکومتي او خصوصي مؤسسو کې یوځای کار کاوه . زموږ د تعلیمي او علمي مرکزونو په برکت په زلمي قشر کې د سیمې او ځانگړي قوم او قبیلې په ځای افغاني ملي روحیه د پیاوړتیوب په لور روانه وه .

دریم : د ترانسپورتي او تجارتي وسایلو د پرمختگ له امله د

هیواد د مختلفو سیمو د قومونو جلاوالی له منځه ولاړ . د ښارونو ترمنځ تجارت وده وکړه ، د ښار او کلي ترمنځ تجارتي راکړه ورکړه زیاته شوه ، په ښارونو کې صنعتي فعالیتونه پیل شول . کلیوال د کارونو لپاره ښارونو ته راغلل او په دې ډول کلیوالي ژوند د ښار په اقتصادي او تجارتي ژوند پورې وتړل شو .

د پوهانو په نظر هره انساني ټولنه ، که وروسته پاتې وي یا پرمختللې ، خپل ځان ته مشخص پرابلمونه زیږوي او خو چې د دې نړۍ پرمخ ټولنیز ژوند دوام لري ترهغې به انسان له اجتماعي پرابلمونو سره لاس او ګریوان وي . ډیرو خاورینو انسانان د افلاتون بشپړ ایدیال ته د رسیدو خوبونه لیدلي دي ، د دغو خوبونو د تعبیر لپاره ډیرې ( خوابنامې ) لیکل شوي دي خو بیا هم بشپړ ایډیال خوب دی او د خوب تعبیر یوازې په ( خوابنامو ) کې لیدلی کیږي . د ډموکراسۍ دوره هم ایډیال نه و . ډیرې نیمګړتیاوې یې درلودې . په دې دوره کې ډیرو پرابلمونو سر راپورته کړ چې ځینې یې تراوسه هم روان دي . باندنۍ سیاسي ایډیالوژیګانې د افغانستان د قومونو د مذهبي او ملي عنعنو سره په ټکر کې ولویدې او ځینو سیاسي ډلو او افرادو په قومونو کې د درز د راپیدا کیدو په هڅه ډول ډول شعارونه پورته کړل او دا هغه هڅې دي چې تراوسه هم په یوه یا بله بڼه پټې او ښکاره روانې دي .

د ۱۹۷۸ کال د ثور تر کودتا وروسته د خلق - پرچم رژیم ( جلا یې کړه او حکومت پرې وکړه ) په پالیسۍ ، ټینګ ودریدل . حال دا چې له پیل څخه افغانانو ته د دې ګوند ایډیالوژي او د ګوند د مشرانو هویت معلوم و . ګوند د کمونستي ایدیالوژۍ په اساساتو ولاړ و او مشرانو یې د شوروي اتحاد د ګټو لپاره نوکري کوله . قدرت ته تر

رسیدو وروسته دا د افغانستان د ټولو قومونو اسلامي او ملي وظیفه وه چې د کمونستي ایدیالوژۍ ، کمونستي دکتاتورۍ او د پردیو نوکرانو په ضد راپورته شي او د خپل مقدس دین ، ملي هویت او خپلواکۍ د دفاع لپاره جهاد پیل کړي . د دغه پیژندل شوي نوکر رژیم مشرانو د افغانستان په مختلفو سیمو کې ډیرې هلې ځلې وکړې ، څو ورونه مسلمان قومونه د یو بل په ضد وجنګوي لاکن دغه هلې ځلې د افغانانو د پخې اسلامي عقیدې او له خپلواکۍ سره د مینې په برکت له ناکامۍ سره مخامخ شوې . دلته له سلګونو مثالونو څخه یو مثال تکرارول غواړم .

څه وخت چې هزاره قام د رژیم په ضد جهاد پیل کړ . د رژیم مشرانو د وردګ قام مشرانو ته وسله ورکړه چې دغه وسله د هزاره اولس په ضد استعمال کړي . اما په عمل کې وښودل شوه چې دغه تحمیل شوی رژیم او د ده مشران د ټولو افغانانو ګډ دښمن دي . وردګ قام د دې په ځای چې دغه وسله د خپل مسلمان هزاره ورور په ضد استعمال کړي هغوې وسله د هزاره قام سره یوځای له یو سنګر څخه د مشترك دښمن په ضد استعمال کړه . د شوروي له یرغل وروسته د کارمل رژیم د ( سرحداتو وزارت ) ته ( د قومونو ، قبایلو او ملیتونو وزارت ) نوم ورکړ . د قومونو له اصطلاح څخه هدف د افغانستان دننه قومونه ، د قبایلو څخه هدف د ډیورنډ د کرښې بلې خواته قبایل او له ملیتونو څخه هدف په افغانستان کې پراته لږ شمیره قومونه دي . په واقعیت کې د دې وزارت ټولې پولې او سیاسي چارې د خاد ریاست ته چې ډاکټر نجیب الله یې مشر و او یا د شوروي اتحاد د جاسوسۍ شبکې ( کې . جي . بي ) غړو روسانو ته سپارل شوې وې او د دې وزارت اساس په مرکزي آسیا کې د شوروي اتحاد د کمونستي رژیم د اداري

تجربې پر بنسټ کېښودل شو . په ۱۹۱۸ کال کې ستالين د شوروي اتحاد د مليتونو د کميسار په حيث وټاکل شو . په دغه وخت کې د روسي ترکستان اوسيدونکي په سلو کې ۹۵ مسلمانان او په سلو کې ۸۲ ترک نژاده وو . هغه د روسي ترکستان د اداري چارو لپاره نوي فارمولونه وړاندې کړل او وروسته يې بيا عملي کړل چې د هغو له مخې لوی روسي ترکستان په کلتوري لحاظ د ازبکستان ، تاجکستان ، ترکمنستان ، قزاقستان او قرغزستان په نومونو ووېشل شو او په نتيجه کې د تزاري امپراتورۍ دغه مستعمره قومونه د نوي کمونستي ګوند په زنجير په کرملين پورې وتړل شول . له دې څخه د کمونستي تزاريانو هدف دا و چې يو مسلمان نژاده لوی ترکستان د کوچنيو جمهوريتونو په نومونو ټوټې ټوټې کړي او په پای کې د دوی ګډ اسلامي او ملي کلتور له منځه يوسي . د ستالين د فارمولونو له مخې د لوی ترکستان د اولسونو ترمنځ په تګ راتګ بنديزونه ولګېدل ، د دوی د مذهب ، ملي عنعنوي او د خپلواکۍ غوښتنې د نهضتونو پرضد کلك فعاليت پيل شو او په پراخه پيمانه د روسانو د سياسي ، اقتصادي، اجتماعي ، کلتوري ، ژبني او نظامي قدرت د تحميلولو پروژه د مسلمانانو د مرګ او ژوبلې په بيې چټکه شوه چې دغه پروسه تراوسه هم يوه يا بله بڼه روانه ده .

د قومونو ، قبايلو او مليتونو وزارت د ستالين د فارمول ( جلا يې کړه او حکومت پرې وکړه ) کټ مټ تقليد دی . د دې فارمول له مخې ( کې . جي . بي ) او خاد غوښتل چې د دې وزارت په واسطه د افغانستان د قومونو ترمنځ د ژبې ، نژاد او کلتور په نومونو اختلاف راپيدا کړي . يو قام له بل څخه جلا کړي او د کمونيزم پرضد جهاد د قومونو ترمنځ په کورنيو جګړو بدل کړي . د دې هدف لپاره له ماسکو

تاجکستان او کابل ښخه په ازبکي ، تاجکي ، ترکمني ، بلوچي او پشه يي ژبو خپروني پيل شوي او تراوسه د هزاره جات يا نورستان او همدا ډول د ازبکو او ترکمنو لپاره په مستقلو سيمو او د افغانستان په فدرالي سياسي جوړښت تاکيد کيږي . د مرکزي آسيا په ځينو خپرونو کي د افغانستان قومونو ته ويل شوي دي چي ( د کلتور په لحاظ پښتانه وروسته پاتي قام دی ، په سلو کي ٤٥ نفوس لري ، نور قومونه يي په زور را لاندي کړي دي او سياسي ، اقتصادي او دولتي چاري يي په خپل لاس کي نيولي دي ) . په دي ترڅ کي د ازبکستان تاريخ پوه نشانوف ، په خپل کتاب ( د اپريل تعميري انقلاب ) کي ليکي : « د ظاهرشاه او داؤد په ظالمانه رژيمونو کي د « پښتونستان » نهضت د دي لپاره پيل شو چي د افغانستان د نورو مليتونو هويت او د دوی ارزښتاکه عنعني له منځه يوسي . د ١٩٦٤ کال اساسي قانون د نورو مليتونو هويت بيخي له نظره غورځولی دی او د افغان اصطلاح يي د ټولو اولسونو لپاره استعمال کړي ده او يوازي په دي يي اکتفا کړي ده چي په افغانستان کي ټول اوسيدونکي قومونه يو افغان ملت دي » .

اوس به په دي موضوع لنډه رڼا واچوو چي د انگلستان په ضد دري غزاگانو او په تير جهاد کي د افغانستان د قومونو ونډه څه توپير لري . ټولو ته ښرگنده ده چي په تيرو دري غزاگانو کي انگريزانو له جنوب لويديځ ، جنوب او ختيځ ښخه کندهار ، پکتيا او ننگرهار له خوا يرغلونه کړي دي ، وسلي ساده وي او په دري واړه غزاگانو کي د افغانستان د جنوب په قومونو فشار زيات و او د وخت د شرايطو له امله دغه جگړي شمالي افغانستان ته خپري نه شوي او يوازي په جنوب کي محدودي پاتي شوي . په دي سيمو کي د پښتون قام اکثريت دی

او همدا وجه وه چې په تیرو غزاګانو کې پښتون قام قاطع ونډه درلوده .
اما اوسنی جهاد د وسلو په لحاظ زیات توپیر لري . دښمن په پرمختللي عصري وسلو سمبال دی . هوایی او زمکنو وسایلو فاصله لنډه کړې ده او ځکه نو مقاومت هم افغانستان شموله دی . په جهاد کې د افغانستان ټولو قومونو او قبیلو مساوي قرباني ورکړې ده . مونږ د پرمختللي تکنالوژۍ په دوره کې ژوند کوو . دښمن د زمکې او فضا له لارې په یو وخت کې د افغانستان ګوټ ګوټ ته ځان ورساوه او د ټولو قومونو بانډې ، کلی او ښارونه یې یو شان وران کړي دي . که له یوې خوا زموږ جهاد افغانستان شموله و او د ټول هیواد قومونه یو شان بوخت وو . له بلې خوا د تیرو کلونو په دوران کې زموږ مقاومت محلي بڼه هم لرلې ده . دښمن چې په کوم ځای یرغل کړی دی نو د هماغه محل خلکو د دښمن په ضد مقاومت کړی دی ، یعنې پښتنو په خپلو سیمو او تاجکو ، ازبکو ، ترکمنو ، بلوڅو ، پشه ئیانو ، نورستانیانو او نورو قومونو په خپلو خپلو سیمو کې د دښمن د یرغل په ضد دریدلي او مقاومت یې کړی دی . له څو مثالونو پرته داسې سوقیات نه دي شوي چې د کنړ خلك هرات ، د هرات دی ننګرهار ، د پکتیا دې مزارشریف او د بدخشان دی کندهار راغلي وي او جهاد یې کړی وي .
سره له دې چې د افغانستان په جهاد کې اسلام او د هیواد دفاع دوه مهم عوامل ګڼل کیدل خو بیا هم د تیرو کلونو په دوران کې د محلي جهاد له امله اوس د هر محل خلك خپل ځان ته د جهاد ځانګړي تاریخ ، مشخص اتلان ، جلا شهیدان او د خپلو کارنامو داسې کیسې لري چې د ویاړ وړ دي . ځکه نو که چیرې دا واقعیت دی [illegible] ټولو قومونو د عمل په ډګر کې ثابته کړه چې افغانستان د [illegible] دی ، په ګډه یې دفاع کوي او ( افغان ) د ټولو قومونو ګډ ملي هویت



د ځینو لرغونو پوهانو ( ارکیالوجستانو ) او تاریخ پوهانو په نظر افغان پنځه زره کلن او د ځینو په قول پنځوس زره کلن تاریخ لري او نامعلوم تاریخ پوهانو او ټولنپوهانو د افغانستان سیمې ته د تیریدو او راتیریدو د لویې لارې ، د فاتحانو مضبوط سنگر ، د هند د فتحه کیدو دروازه او د مختلفو قومونو د ټاټوبي او د مختلفو قامونو او ولسونو په یو او بل کې د ویلې کیدو د لوښي او نور نومونه ورکړي دي . دې ستراتیژیکې سیمې ته مختلف قامونه ، یرغلگر پوځونه او د خپل وخت لوی مذهبونه راغلي او له دې ځای څخه نورو سیمو ته تیر شوي او راتیر شوي دي . له ډیرو قامونو څخه ځینې قبیلې او خلک هم دلته پاتې شوي ، میشت شوي او یو تربله سره خلط شوي او د وخت په تیریدو یې په دې سیمه ځلانده تمدنونه جوړ کړي او د تاریخ په اوږدو کې د دې خاورې د اوسیدونکو قامونو تمدنونو د چاپیره اولسونو د تمدنونو په ځنځیر کې د اتصال د کړۍ په حیث مهم مقام درلودی دی .

د اسلام د مقدس دین نه مخکې په دې سیمه قبیله یي ، محلي ، هندویزم ، بودیزم او زردشتي مذهبونه تیر شوي او د دوی په نتیجه کې د لرغونو مختلفو اما مختلطو قامونو عنعنه یي دودونو او مذهبي ارزښتونو د افغانستان د ولسونو د ژوند په ځانگړو اړخونو ډیرې ژورې اغیزې کړې دي . په زغرده ویل کیدای شي چې د افغانستان د عنعنه- یي ټولنې دودونه او ارزښتونه د یو قام زیږنده نه ده او نه په یوه لنډه موده کې د دې ټولنې غړو وگړو ته د منلو وړ گرځیدلي دي ، بلکه زموږ د عنعنه یي ټولنې ولسي دودونه او مذهبي ارزښتونه د یوې اوږدې عملیې په نتیجه کې منځته راغلي او زموږ د هیواد مختلفو قامونو په ویر لږ توپیر یو شان منلي دي . افغانستان ته د ویلې کیدو لوښي ځکه وایي چې دلته له بومي خلکو برسیره آریایي قبیلو ، تور

دی ، نو دا هم یو څرګند واقعیت دی چې زموږ محلي جهاد په هر قام کې یو مشخص قومي احساس راژوندی کړی دی او په راتلونکي اسلامي خپلواك افغانستان کې دغه احساس یوې مثبتې عادلانه مجراته ضرورت لري .

زړې عینکې ماتول غواړي . د اسلامي او ملي عدالت په حکم د راتلونکي افغانستان سیاسي واکمن مجبوریږي چې د هیواد د ټولو قومونو مسالې ته له نویو عینکو څخه په نوي نظر وګوري او هر قام ته د هغه د شمیر په اندازه د هیواد په ټولو سیاسي ، اقتصادي ، اجتماعي او کلتوري چارو کې خپله برخه ورکړي او یوازې عادلانه برخه ورکول د دې باعث کیږي چې د هیواد ټول قومونه د ملي یووالي د تحکیم ، د هیواد د بیا ودانولو او پرمختګ په لار کې د زړه له کومي ګډ کار وکړي او زیار وباسي . کیدای شي چې ځیني خلك د افغانستان د قومونو مسالې ته له بلې زاویې څخه ګوري او دغه مساله ورته د دوی د نظر په چوکاټ کې حل وي خو بیا هم دا د افغانستان د نورو مسألو په شان یوه مسأله ده چې تشخیص غواړي او د حل لپاره مثبت فکر او عمل ته اړه لري . په مسأله باندې د پردې اچول د مسالې حل نه دی . که چیرې د راتلونکي اسلامي افغانستان سیاسي واکمن په دې مساله فکر ونه کړي یا معقوله مجرا ورنه کړي نو نتیجه به یې د قومونو ترمنځ خپړتیا راپیدا کول وي او په دې خړو اوبو کې به ځیني متعصب سیاسیون او ځیني د باندنیو هیوادونو نوکران کبان نیسي او افغانستان به تر ډیرې مودې له سیاسي ستونزو سره مخامخ وي .



او سپین هونز ، یونانیانو ، عربو ، مغلو او نورو قومونو گډ ژوند کړی او د دغه گډ ژوند له امله یو نژاد په بل او بل په بل ژبني او کلتوري اغیزې کړې او هم یې ترڅنګ منځ مشخص قبیله یې مهارتونه ، د تخنیکي وسایلو استعمال او اجتماعي او کلتوري دودونه او مذهبي ارزښتونه یو او بل ته ورکړي او اخیستي دي . زمونږ په ټولنه کې چې کومو دودونو او ارزښتونو د دې ټولنې په ژوندي پاتې کیدو او پرمختګ او د ټولنې د غړو وګړو د اړیکو ترمنځ د همآهنګۍ او اجتماعي روحیاتو د پیاوړتیا په لار کې ګټوره نتیجه ورکړې ، دغه ارزښتونه د ټولنې له خوا منل شوي ، عملي شوي او په دروند نظر ورته کتل شوي دي او هغه عملونه چې د ټولنې د منل شوو نورمونو په ضد شوي د دې ټولنې غړو دغو عملونو ته انحراف ، بد اخلاقي او د ټولنې په ضد عملونه ویلي دي . زمونږ د دودونو او ارزښتونو له مخې د افغاني ټولنې د ژوند په ټولو اړخونو کې د ښه او بد عمل ترمنځ واضح فرق شته او د نورو انساني ټولنو غوندې دې ټولنې هم د ښه عمل د ځانګړو او د بد عمل د رټلو او مخنیوي لپاره د خپلو اجتماعي او مذهبي مؤسسو په چوکاټ کې دننه مختلف معیارونه او کړنلارې ټاکلي دي او د ټولنې هر غړی له دغو اجتماعي نورمونو سره سم چې زمونږ د ټولنې د ژوندي ، عملي او اخلاقي قانون بڼې لري د ښه عمل په کولو او د بد عمل په نه کولو مکلف ګڼل کیږي . دودونه او ارزښتونه د شرایطو له بدلون سره سم څه ناڅه بدلون مومي او د دوی ساتل او پریښودل د بدل شویو شرایطو لاندې له ګټې او تاوان سره ارتباط لري . هغه دودونه اوارزښتونه چې د ټولنې غړو وګړو ته ګټه رسوي هغوی ساتل کیږي او هغه چې تاوان رسوي هغوی پریښودل کیږي .

د افغانستان سیمه د ستراتیژیک موقعیت په لحاظ د تیریدو او

راتیریدو لویه لار ده او د دې سیمې اولسونو تل د هر یرغلګر په مقابل کې پرله پسې اوږدې دفاعي جګړې کړې،او دغو جګړو په دوی کې له وطن سره د مینې او آزادۍ روحیه دومره ژوندۍ او قوي ساتلې ده چې حتی دوی د افغانستان د مرکزي حکومت تسلط ته هم په اسانه غاړه نه ږدي . له بلې خوا د افغانستان مرکزي حکومت هم په اقتصادي ، نظامي او اداري لحاظ دومره قوي نه و ، چې د دې هیواد سیاسي پولو دننه ټول قامونه دې د مرکزي حکومت د اداري لاندې راوستلای شي او ټول قامونه دې یو شان د مرکزي حکومت د قوانینو تابع کړي . د افغانستان د نورو قامونو په پرتله د پښتنو قبیله یي ژوند د دوی د قبیله یي جوړښت ، قبیله یي روابطو ، قبیله یي فزیکي قوت ، ساده اقتصادي ژوند ، د پښتونولۍ د عنعنه یي کودونو او د آزادۍ د روحیې په لحاظ ډیر دوام کړی دی او دوی د مرکزي حکومت اداري او قوانینو ته پخپلو چارو کې د مداخلې او بندیز په نظر ګوري . په لنډه توګه ویلی شو چې د افغانستان ټول قامونه خپلې ډیرې مسالې د خپلو عنعنه یي دودونو او ارزښتونو سره سم د جرګو او مرکو له لارې فیصله کوي او د دې هیواد ټول ولسونه جرګه یوه منل شوی تاریخي مؤسسه ګڼي .

## د جرګې مؤسسه :

د افغاني ټولنې د نورو اجتماعي مؤسسو غوندې د جرګې مؤسسې د دې هیواد د مختلفو قامونو له ولسي دودونو اومذهبي ارزښتونو څخه سرچینه اخیستې او له ډیرې لرغونې دورې څخه یې تراوسه د دې خاورې د ولسونو د ژوند په ټولو اړخونوکې مهم او ډیر فعال رول لوبولی دی . که پخوا آریاییانو کلیوالې جرګې ته سبها او د

لویانو یا خاصانو ملي جرګې ته سمیتي ویلی ، که نورو قامونو ورته نور نومونه ورکړي او که اوس د دې هیواد په مختلفو قامونو کې د مجلس ، اجلاس ، جلسه او شوری په نومونو شهرت لري او که د ځینو څیړونکو په نظر د جرګې نوم د ترکي ژبې څخه پښتو ته راغلی دی خو بیا هم د دې ټولو نومونو باوجود د جرګې مؤسسه د افغانستان په ټولو قامونو کې یوه پیژندل شوې ، تجربه شوې او منل شوې عنعنه یې مؤسسه ده او د دې هیواد ټولاولسونه د دې مؤسسې د جوړښت او ترکیب او په جرګه کې د فعالو او موثرو اشخاصو د هویت ، حیثیت او شخصیت سره پوره بلد دي .

د جرګې مؤسسه د افغاني ټولنې ټول واحدونه ، کورنۍ ، قبیلې ، د محل اوسیدونکو او ملت سره او هم د دې ټولنې د اجتماعي ، کلتوري اقتصادي ، سیاسي او نظامي ټولو چارو سره ژور ارتباط لري او د ولس د ژوند ټول اړخونه احتوا کوي . زمونږ په ټولنه کې هره جرګه او مرکه د مسالې د اهمیت په لحاظ دایریږي او هم د هرې مسالې په ارتباط د اشخاصو شمیر ، حیثیت او جرګه ځای معلوم وي . د کورنۍ د مسالې لپاره د کورنۍ مشر یا مشران ، د کلي د مسالې لپاره د کلي مشران ، د قبیلې د مسالې لپاره د قبیلې مشران ، د قبیلو ترمنځ د مسالې لپاره د قبیلو مشران ، د محل د مسالې لپاره د محل مشران او د ملي مسالې لپاره د ټول هیواد د مختلفواولسونو مشران او متنفذ اشخاص په ټاکلو ځایو کې راټولیږي چې د معمول له مخې مرکې یا وړوکې جرګې په حجرو او دیرو کې ، د قبیلې ، قبیلو او محل د جرګې په ټاکلو جرګه ځایو کې او لویې جرګې د هیواد په پایتخت کې دایریږي .

پخپله سیمه کې هرڅوک هرچا ته معلوم وي چې څوک څوک دی ؟ زمونږ په ټولنه کې مشرتوب زمونږ له عنعنه یې خصوصیاتو سره

ارتباط لري او هرځوك په يوه سيمه يا په يوه قبيله كې د مشرتوب دعوه نشي كولاى او نه د محل او قبيلې خلك د هرچا مشرتوب مني او نه ورته غاړه ږدي . د جرگې اشخاص معمولاً د سيمې خانان ، ملكان ، بايان ، اربابان ، سپين ږيري ، پيران ، سيدان اوملايان دي . مشر د خپل محل يا قبيلې د مشرتابه د كورنۍ غړي وي ، د ده كورنۍ وياړلې تاريخچه لري ، خلكو ته د هغه د مشرانو خصوصيات معلوم وي او خلك د هغه د كورنۍ په لحاظ د هغه مشرتوب مني ، شخصيت ته يې په درونه نظر كتل كيږي او ساهو كورنۍ او ساهو شخص يې گڼي او درناوى يې كوي . له دې برسيره د هغه د مشرتابه ترشا اولسي قوت ولاړ وي ، د زمكې خښتن وي ، حجره يا مهمانخانه چلوي ، ميلمه دوست وي ، د خپل اولس په غم او ښادۍ كې شريك وي ، د اولس په ننگ او ناموس ولاړ وي ، د خپل اولس د غړو او نورو خلكو ترمنځ د ارتباطي او نماينده شخصيت موقف لري ، د اولس ترمنځ امنيت ساتي ، اولسي شخړې اواروي ، د سولې او جگړې په دوران كې لارښوونه كوي ، مستعد ، پوه او زړور وي او د اولس عنعنه يې نورمونو ، كودونو او مذهبي ارزښتونو ته عملي بڼه وركوي او په ټولو اولسي چارو كې پوره مهارت لري . اولسي ژوند او اولسي روابط يو مشر دې ته مجبوروي چې د محل يا د قبيلې د غړو يا د نورو اولسونو له مشرانو سره ترخپله وسه ښه روابط وساتي او د اولس د منل شويو كودونو په چوكاټ كې دننه اولسي چلند وكړي .

مشخص اقتصادي تكامل د ټولنې په بنسټيز جوړښت كې بدلون راولي او د دغه بدلون له راتگ سره د وروسته پاتې ټولنې سياسي سيستم په ملي دولت بدليږي او ورسره د ټولنې ټولې اجتماعي مؤسسې او اجتماعي روابط هم بدلون مومي او ملي كلتور هم ملي بڼه

غوره کړي . تراوسه افغانستان په واقعي مفهوم د ملي دولت مرحلې ته
نه دی رسیدلی او د ملي سیاسي سیستم د نشتوالي له امله مونږ تراوسه
یو داسې ملي کلتور ته چې افغان شموله ملي بڼه ولري او ټولو اولسونو
ته دې یو شان د منلو وړ وي وده نه ده ورکړې . همدا وجه ده چې زموږ
په وروسته پاتې ټولنه کې تراوسه د کلتوري روزنې او زده کړې عملیه
په کورنیو پورې محدوده ده اوتراوسه د کورنۍ د غړو د روزلو او د
ټولنې په کودونو ، دودونو او ارزښتونو باندې د پوهیدو اساسي واحد
کورنۍ ګڼل کیږي . حجره یا مهمانخانه د مشرتابه د کورنۍ د غړو د
اجتماعي کیدو ، په اولسي روابطو د پوهیدو او د اجتماعي او سیاسي
موقف د ساتلو اساسي مرکز دی . دلته ښکته ، مساوي او پورته خلك
راځي ، دلته له مختلفو قشرونو سره د راشه درشی په سلوك پوهه پیدا
کیږي ، د هر چا خبرې اوریدل کیږي او د جرګې او مرکې د منلو شویو
اصولو په اساس د مخالفینو نظر هم په سړه سینه زغمل کیږي .

زمکه او جایداد د مشرتوب مهم بنسټ ګڼل کیږي او منل شوی
مشر د نورو په تناسب د ډیرې زمکې په درلودلو پخپلو سیالانو یا د
خپلې قبیلې د مساوي غړو ترمنځ د اول فرد حیثیت پیدا کوي . مشر د
وینې او سیمې په ارتباط د یو مشخص واحد غړی وي او په مشخصه
سیمه کې ژوند کوي . سره له دې چې د مشرتابه د کورنۍ د خصوصي
ملکیت برخه معلومه وي لیکن تراوسه د خصوصي ملکیت پروسې
زمونږ د هیواد د لوی اکثریت ګروپې او سیمه ییز شعور نه دی مات
کړی او تراوسه هر مشر ځان په دغه شعور پورې منسوب ګڼي او
«زما» په ځای « زمونږ » اصطلاح په شعوري ډول استعمالیږي . د مثال
په توګه څه وخت چې یو مشر له نورو سیمو څخه راغلو میلمنو ته د
خپل قام او یا اولس ساحه او زمکه ورښیی لومړی هغه « زمونږ » د



# افغاني ټولنه، ارزښتونه او د جرګې مؤسسه

## لومړنی خبرې :

هره ټولنه ډیر متلونه او ښځې خبرې لري، خو له هغو څخه ځینې د ښو خبرو مقام ته رسیږي او لږې ښځې خبرې هم د متلونو بڼه غوره کوي . هغه متلونه او ښځې خبرې چې د ژوند په واقعیتونو ولاړې وي ژوندی پاتې کیږي او د یوې مشخصې ټولنې له یو نسل څخه بل نسل د کلتوري میراث په حیث انتقال مومي .

افغاني ټولنه هم ډیرې ښځې خبرې او ډیر متلونه لري او د دې مضمون پیل هم له یو متل څخه کوم ، لکه چې وایي : « څوک چې ځان نه پیژني هغه جهان هم نه پیژني » . په ظاهره خو دا یو ساده او تکرار شوی متل برېښي اما په واقعیت کې دا ساده او تکرار شوی متل د ژوند په واقعیت ولاړ دی او د افغاني ټولنې د بیګانه ګۍ له احساس

قبيلې يا اولس د سيمې حد ، بيا « زمونږ » د ټبر د واحدونو بريدونه ( حدود ) وروسته « زمونږ » د کورنۍ‌او په پای کې « زما » برخې ته اشاره کوي او « زمونږ » په ځای « زما » اصطلاح يوازې د خپلې محدودې برخې لپاره استعمالوي . سره له دې چې زمونږ په ټولنه کې د فرد خصوصي ملکيت يو منل شوی واقعيت دی خو بيا هم زمونږ د هيواد په ډېرو سيمو کې د زمکې خرڅلاو ته په سپك نظر کتل کيږي او په عنعنه يې توګه د زمکې خرڅلاو ته د پلار او نيکه د هډوکو د خرڅلاو نوم ورکوي . له دې برسيره د زمکې د خرڅلاو مسأله ډير محدوديتونه لري او که د ځينو مجبوريتونو په صورت کې يو شخص زمکه خرڅوي د نوموړې دغه زمکه او جايداد د هغه ورونه اخلي او ورپسې يې د تره زامن او نژدې خپلوان د اخيستو حق لري او که دوی يې نه اخلي نو بيا نوروته د اخيستو حق ورکول کيږي .

که له يوې خوا د زمکې اضافي توليد په حجره او مهمانخانه لګيږي او د حجرې مؤسسه د مشرتابه د روابطو او حيثيت د ساتلو اساسي مرکز دی او د خلکو په اصطلاح چا چې حجره او جرګه نه وي ليدلي هغه د افغانانو په اجتماعي جوړښت ، اجتماعي روابطو او اجتماعي روحياتو هم نه پوهيږي ، له بلې خوا د قام او د زمکې قباله درلودل په مشرتابه کې دې شعور ته هم وده ورکوي چې د يو مشر د کورنۍ‌او د زمکې واحد د هغه د کهول او د کهول د زمکې د واحدونو برخه ده او د هغه د کهول او د کهول د زمکې واحدونه د هغه د ټبر او د ټبر له واحدونو سره ارتباط لري ؛ د هغه ټبر او د ټبر د زمکې واحدونه د هغه د قبيلې او د قبيلې واحدونه او سيمه د قام په واحدونو او سيمو پورې پراخيږي او په نتيجه کې د قام واحد او د سيمو واحدونه د افغانستان د نورو قامونو او د ټول هيواد د خاورې نه جلا

اساس شوی دی . د عربو ډیره برخه د انګریزانو او د یورپ د نورو هیوادونو تر تسلط لاندې وه او د دې هیوادونو مسلمانانو د مذهب او ملي نظریو له لارې د آزادۍ هلې ځلې کولې چې د دوی له جملې څخه په مصر کې د اخوان المسلمین د اسلامي نهضت منځ ته راتګ یې څرګند مثال دی .

د پیړیو راهیسې سني او شیعه مسلمانانو د افغانستان په کلیو ، بانډو او ښارونو کې ګډ ژوند کړی دی او د تاریخ په اوږدو کې د سني او شیعه په نوم څه داسې لویه پیښه منځ ته نه ده راغلې چې د نورو اسلامي ټولنو په شان د دغو دوو مسلمانو ډلو ترمنځ رقابت او شخړې د جګړې تر سرحده رسیدلې وي . د روا دارۍ او برابرۍ د ګډ ژوند له امله د ځینو نامتو شیعه ګانو کورنیو نجونې سني شهزادګانو ته واده شوې وې او یو شمیر نامتو اشخاص یې د درانو د مشرانو غوندې د سردارۍ په القابو ځانځل شوي دي . د دغو ځانګړو خصوصیاتو په وجه افغانانو د نورو مذهبونو سره رقابت ، شخړې او جګړې نه درلودې ، د سني او شیعه ترمنځ د ګډو ښو روابطو په وجه خپلمنځي مذهبي تعصب د نشت برابر و او همدا علت و ، چې په ټول هیواد کې د ټولو مذهبونو په مقابل کې د لوړو انساني ، اسلامي او افغاني ارزښتونو په اساس بې تعصبه چلند کیده .

۲ - همدا شان د اجتماعي او کلتوري ارزښتونو له مخې افغانان تل د خپل کور ، کلي او قوم د مشرانو او د هیواد د سیاسي مشرتابه درناوی خپله افغاني فریضه ګڼي ، خو بیا هم له مشرانو سره د درناوي اړیکې د افغانانو په مشخصه مساوات طلبه روحیه ولاړې دي . د افغانانو په مساوات طلبه اجتماعي جوړښت او له دغه جوړښت څخه تلقین شوی اجتماعي روحیې او د ډکتاتورۍ ترمنځ ژور او نه پُخلا

مشخصو عواملو تینگار هم کړی دی ، لیکن بیا هم زمونږ د ټولنې په اړوند دغه ټول عوامل له یو بل څخه نه جلا کېدونکې ريښې لري او د دغو پیچلو عواملو په نتیجه کې د بیگانه گۍ احساس منځته راغلی دی او اوس د ټولنې په بې تعلیمه اوتعلیمیافته دواړو قشرونو کې یو شان لیدل کیږي . د بیگانه گۍ د احساس په ټولو اړخونو کرېدل او د دغو پیچلو عواملو د څېلسځي اړیکو تحلیلول اوږده موضوع ده شاید چې په دې مضمون کې د موضوع په ارتباط ځینو عواملو ته ځای په ځای لنډه اشاره وشي .

د تاریخ په اوږدو کې ډېر خارجي لیکوال او سیلانیان د افغانستان سیمې ته راغلي او د دې سیمې په قامونو ، ټولنو او د دوی د ژوند په مختلفو اړخونو یې لیکنې هم کړي دي . د دغو لیکنو لږه برخه د دې سیمې د ولسونو د ژوند واقعي یا واقعیت ته نږدې عکاسي کوي او ډیره برخه یې د لیکوال د لږو معلوماتو ، یا د قیاس ، یا د تقلید او یا د سیاسي او مذهبي تعصب له مخې شوې ده او هم دې لیکوالو د خپلو ناسمو ارزیابیو په وجه په افغانانو کې د بیگانه گۍ احساس راپیدا کړی دی . څرگند مثالونه یې انگلیسو ته د افغانانو منسوبول دي .

دلته د شلمې پېړۍ په وروستۍ نیمایي کې د غرب ، افغانانو او د شوروي اتحاد د لیکوالو په لیکه دود او د هغوی په میتود لنډې خبرې کیږي .

## لویدیځ لیکوال :

انگریزانو د خپلو څېړونکو ، ډیپلوماټانو ، نظامي پرسونل ، سیلانیانو ، جاسوسانو او محلي راپورچیانو په وسیله د افغاني ټولنې په باره کې پراخه څېړنې کړې دي چې تراوسه د لویدیځ نیمه د نورو هیوادونو لیکوال د هغوی په آثارو اتکا کوي او د باوري ماخذونو په

کیدونکي تضاد پروت دی . د درناوي باوجود که چیري په افغاني ټولنه کې پلار د زوی په مقابل کې ، د کلي مشر د کلیوالو په مقابل ، د قوم مشر د قوم په مقابل کې او یا د هیواد سیاسي مشر د ملت په مقابل کې له وچ زور ، تحمیل او ډکتاتورۍ څخه کار اخلي ، په نتیجه کې د کور ، کلي ، قوم او د هیواد دغه ډول مشران د ډکتاتورانو په نومونو غندل کیږي ، له مقاومت سره مخامخ کیږي چې په خونړیو جګړو بدلیږي . د افغاني ټولنې مساوات طلبه اجتماعي جوړښت په افغانانو کې د یو بل په انډول د سیالۍ اجتماعي روحیه ډیره پیاوړې کړې ده او د همدې روحیې له مخې په افغاني ټولنه کې د جرګې سیستم منځ ته راغلی دی . په جرګه کې د کشر او مشر هرارشي شته ، د کور ، کلي او قوم د مشرانو او د روحانیونو او ملایانو ځای پکې معلوم دی او هر څوك له خپل اجتماعي حیثیت سره سم د جرګې په پریکړو کې خپل مشخص ځای لري . د مساوات طلبه روحیې په اساس د جرګې هر غړی حق لري چې د مسالې په ټولو اړخونو آزاد بحث او خبرې وکړي او په جرګه کې هیڅوك یو په بل خپل نظر او پریکړه په زور نشي تحمیلولای او همدا وجه ده چې جرګه په افغاني ټولنه کې د هر ډول دکتاتورۍ او خپلسرۍ د مخنیوۍ لپاره اساسي او قوي مؤسسه ګڼل کیږي ، ځکه چې له زور او تحمیل پرته د جرګې هره پریکړه په ګډه کیږي او هرې ګډې پریکړې ته په ګډه د عمل جامه اغوستل کیږي .

۳ – همدا شان د افغانستان مشخصو اجتماعي ، کلتوري او اقتصادي شرایطو د دې هیواد د هرې سیمې په اوسیدونکو کې د یو بل په کورنیو چارو کې د لاسوهنې په ضد او د قبیلوي او له سیمه ییز اجتماعي او اقتصادي موقف او حیثیت څخه د دفاع روحیه ژوندۍ ساتلې ده . د هیواد مختلف قومونه او قبیلې یا په مشخصو سیمو او

په ځینو سیمو کې یو بل ته نژدې یا په یو چم کې اوسیږي . ځینې قومونه د قبیلو ، زې یا خیلونو په نومونو او ځینې قومونه د محل په نومونو یادیږي . هره قبیله د خیلونو ، ټبرونو ، کهول او کورنیو په مختلفو قبیلوي واحدونو ویشل شوې ده او د قبیلې هر واحد د نورو قبیلوي واحدونو په مقابل کې او یوه قبیله د بلې قبیلې په مقابل کې د خپل مشخص اجتماعي او اقتصادي موقف او حیثیت ساتندویه وي او یوه قبیله هم نه غواړي چې د نورو قبیلو په مقابل کې او د یوې قبیلې واحدونه د خپلې قبیلې د نورو واحدونو په مقابل کې

خپل اجتماعي او

اقتصادي حیثیت او هویت له لاسه ورکړي . همدا شان د یوې سیمې اوسیدونکي د بلې سیمې د اوسیدونکو په مقابل کې له خپلو سیمه ییزو ګټو څخه دفاع کوي او باندنیو ته اجازه نه ورکوي چې په زور ځان تحمیل کړي او د بلې سیمې د اوسیدونکو محلي حیثیت له منځه یوسي .

د افغانانو له اجتماعي جوړښت او اجتماعي روحیې څخه څرګندیږي چې په دوی کې هر ډول باندنۍ مداخلې ولو که د خپلې قبیلې له نورو واحدونو څخه هم وي یا د هیواد د بلې سیمې د زغم وړ نه دي . دوی له زور ، تحمیل او مداخلې څخه کرکه کوي او د کرکې دغه پروسه د کورنۍ له واحد څخه نیولې تر قبیلې ، او له یوې سیمې نه تر بلې سیمې اوُ په پای کې د هیوادونو تر سطحې پورې لیدل کیږي ، لکه څنګه چې یو واحد د بل واحد ، یوه قبیله د بلې قبیلې ، یوه سیمه د بلې سیمې په مقابل کې د خپل موقف ، حیثیت او ګټو څخه دفاع کوي ، همدا شان د افغانستان ټول قومونه ، قبیلې او سیمې ټل له خپل هیواد څخه د دفاع ډګر ته رادانګي . دوی باندنیو ته اجازه نه ورکوي چې د دوی هیواد دې د مستقیمې مداخلې له لارې په زور سنبکل کړي

او یا دې اجنبي قوتونه د خپلو ټاکلو ګوډاګیانو په واسطه په غیر مستقیم ډول په افغانانو حکومت وکړي .

## د دموکراسۍ دوره :

د افغانستان له عنعنوي شرایطو برسیره نړۍ د کمونیزم او سرمایه دارۍ په دوو ایډیالوژیکانو او له دغو ایډیالوژیکانو څخه په زیږیدلو سیاسي ، اقتصادي او نظامي بلاکونو ویشل شوې وه . په شمال کې د کمونستي بلاك لویه امپراتورۍ شوروي اتحاد او په غرب کې ایران او په ختیز او جنوب کې پاکستان د لویدیزې نړۍ د سرمایه دارۍ سیستم دوه ملګري د افغانستان ګاونډیان وو او سوړ جنګ په شدت روان و . د داخلي او خارجي شرایطو له امله د افغانستان پاچا یا د دغه وخت پارلماني سیاسي سیستم ته دوه لارې خلاصې وې چې د وخت له غوښتنو سره سم د افغانستان د انکشاف لپاره یا د انقلابي بدلون یا د ارتقایي پروسې لارې خپلې کړي . د عیني شرایطو له مخې د انقلابي بدلون پرځای د ارتقایی پروسې لار غوره شوه او په هیواد کې د سیاسي ، اقتصادي ، اجتماعي ، تعلیمي ، نظامي او نورو بدلونونو او انکشاف لپاره هر اړخیزې هلې ځلې پیل شوې .

د افغانستان په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره یو عصري او د وخت او زمان له شرایطو سره برابر اساسي قانون نافذ شو . د هیواد اجرائیه ، مقننه او قضائیه ارګانونه په مستقل ډول یو له بل څخه جلا شول . دوه ځله انتخابات وشول . پارلمان ته د اولس په خوښه ټاکل شوي وکیلان چې ښځې هم پکې وې ، راغلل . د مختلفو حوزو نماینده ګانو په سیمه ییزو ، ملي او نړیوالو مسایلو آزاد بحثونه پیل کړل . د لومړي ځل لپاره د شاهي کورنۍ د غړو پرځای نور تعلیمیافته افغانان د

صدراعظمانو او وزیرانو په حیث په کار وګمارل شول او کابینې له پارلمان
څخه د باور د رایې د اخیستلو لپاره موظفې شوې. په ټوله سیمه کې
افغانستان یوازینی هېواد و، چې د پارلمان د باور د رایې او د نورو
مهمو مسالو جریان مستقیماً له راډیو څخه او هم په ورځپاڼو کې
خپرېده. د نظر او مفکورو په بیانولو او لیکلو بندیز نه و. خلکو حق
درلود چې د هېواد په ټولو سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او کلتوري
مسایلو خبرې وکړي، لیکنې وکړي او د هر مسوول شخص د ناوړه
چلند په برخه کې پوښتنې مطرح کړي. د حکومت له ورځپاڼو او
جریدو نه علاوه یو شمېر ګوندي او خصوصي جریدې هم منځ ته
راغلې. په ټول هېواد کې د ښوونځیو او روغتونو پراخه جال خپور شو.
کلیوالي، لومړنیو او منځنیو ښوونځیو او لیسې تأسیس شوې. د نجونو
او هلکانو لپاره بېل شان تعلیمي انستیتوتونه برابر شول. د لوړو زده
کړو لپاره یې د پوهنتونونو او نورو تعلیمي مؤسسو فعالیتونه پراخه
کړل. زلمي او نجونې د لوړو زده کړو لپاره بهرنیو هېوادونو ته واستول
شول. د دولت د کارکوونو د [illegible] لپاره قوانین جوړ شول او په ټولو
دولتي ارګانونو کې تعلیم یافته پرسونل په کار وګمارل شو. پخوا لویو
لارو د هېواد دننه لارې بنا شوې او ګاونډي هېوادونه یو له بل سره
ونښلول. د مخابراتو شبکې وغځېدلې. په هېواد کې دننه او د باندې
تماسونه، تجارت او د تګ راتګ پروسې پراخې او چټکې شوې. لنډه دا
چې په ټولو ولایتونو کې مختلفې دولتي او خصوصي پروژې پیل
شوې او د ارتقاء د پروسې په چوکاټ کې دننه د سیاسي، اقتصادي،
اجتماعي، کلتوري، نظامي، تعلیمي او د نورو ساحو د پرمختګ د
بنسټونو د ټینګولو کار پرمخ روان شو.

د سیاسي علومو ډېر پوهان په دې معتقد دي چې د خلکو په

خوښه د خلکو حکومت او د خلکو لپاره حکومت چې د دموکراسۍ په نوم بلل کیږي ، د ټولو سیاسي سیستمونو په تناسب ډیر ګران سیاسي سیستم دی . د دموکراسۍ د کامیابیدو لپاره د ټولني عمومي تعلیم ، سیاسي شعور ، د قانون حکومت ، د مطبوعاتو آزادي ، فردي او خصوصي ابتکار او اقتصادي وده د یو شمیر نورو فکتورونو له جملې څخه مهم فکتورونه ګڼل کیږي . د ډکتاتورۍ برعکس د خلکو رایې په ټاکل شوي سیستم کې د خلکو او دولت د ټولو ارګانونو ترمنځ روابط وده مومي ، د بریالي ګوند یا ګوندونو د حکومت غړي پارلمان ته د مسؤولیت احساس پیدا کوي ، خصوصي مؤسسې او شعور لرونکي هیوادوال د حکومت د غړو او د حکومت د پالیسۍ ټول اړخونه د نظر لاندې ساتي او د هیواد ملي او بین المللي ارګانونه ، لکه مطبوعات ، راډیوګانې ، تلویزیونونه او نور د منتخب حکومت د ټولو چارو دقیقه او آزاده ارزیابي د خلکو قضاوت ته وړاندې کوي . بریالی ګوند یا ګوندونه په دې پوهیږي که چیرې هغوی خلکو ته ورکړې وعدې سر ته ورسوي نو په راتلونکو انتخاباتو کې خلك د هغوی ګوند او د ګوند غړو ته رایې نه ورکوي او د دوی ګوند ماتې خوري . د حکومت کولو په ځای یا د مخالف ګوند موقف ته راکښته کیږي او یا دومره وړوکی اقلیت ترینه جوړیږي چې په نتیجه کې د هیواد په سیاسي مسایلو کې د دوی برخه بیخي د نشت سره برابریږي .

پارلماني سیاسي سیستم هم څه ایډیال سیستم نه دی ، بلکې ډیرې نیمګړتیاوې لري او د افغانستان پارلماني دوره هم له یو لړ نیمګړتیاوو څخه خالي نه وه . خو د یو لړ نیمګړتیاوو باوجود پارلماني دوره د سردار محمد داؤد د جمهوریت او د ثور د کودتا راهیسې تراوسه د دغو ټولو حکومتونو په پرتله ښه دوره ګڼل کیږي ، ځکه چې د پارلماني دورې نه

وروسته افغانستان له یوې داسې بدبختۍ او تباهۍ سره مخامخ شوی دی
چې د دې هیواد په ټول تاریخ کې ساری نه لري . متل دی : که سنډا
ډیر خوار شي بیا هم د یو غریبي هومره غوښه لري ؛ همدا شان که
دموکراسي یا د خلکو په خوښه ټاکلی حکومت ډیر خراب هم شي بیا هم
له هر ډول دکتاتوري رژیم څخه ډیر ښه وي .

د دموکراسۍ د دورې د یو لړ نیمګړتیاوو له جملې څخه د ګوندونو
پر قانون په امضا نه کولو ، شوروي او شوروي پلوه خلق ، پرچم
ګوندونو ته د لار د خلاصیدو په نیمګړتیاوو ډیر تنقیدونه شوي دي او
کیږي . وایي چې پارلمان د ګوندونو قانون پاس کړ اما پاچا ترپایه
امضا نه کړ . د دې مسالې په ځواب کې ویل کیدل چې په افغانستان
کې مختلف قومونه او قبیلې ژوند کوي ، تعلیم ډیر لږ دی ؛ ډیر لږ
خلك د ټول هیواد په مسألو فکر کولای شي . د خلکو د لوی اکثریت
سیاسي شعور د ځان ، کورنیو ، قبیلې او د سیمې تر سرحدونو پورې
محدود دی . په داسې شرایطو کې ګوندونو ته اجازه ورکول او د ګوند
په نوم هلې ځلې پیل کول حتماً د کورنیو ، قبیلو ، سیمو ، قومونو او
مذهبونو بنې غوره کوي او د دموکراسۍ پروسه په کورنۍ جګړو
بدلیږي . د دې دلیل په ځواب کې ویل کیږي چې د ګوندونو په قانون د
امضا نه کیدو له امله په افغانستان کې سیاسي خلا پیدا شوه ، یو
شمیر خلکو د ګوندونو د قانون د امضا انتظار کاوه او له بلې خوا
تعلیمیافته قشر د نورو هیوادونو له پرمختګونو څخه خبریده ، د
هغوی په باره کې یې لوستل ، د هغوی په باره کې یې بحثونه کول او
په خپل هیواد کې یې هم چټك بدلون غوښت . دې سیاسي خلا په
تعلیمیافته قشر کې د بیګانه ګۍ احساس راپیدا کړ ، چې په نتیجه
کې له دې سیاسي خلا څخه په استفاده د چپي ایډیالوژۍ پلویانو د

هیواد یو شمیر تعلیمیافته د کمونستي ایدیالوژۍ په لوستو عادت کړل
او تر یو حده یې دغه خلک د کمونستي ایدیالوژۍ په ګټه واکه کړه .

د افغانستان او شوروي اتحاد نږدې کېدل او په افغانستان کې
کمونستي ایدیالوژۍ ته لار خلاصیدل اوږده بحث دی چې دلته یې لنډیز
وړاندې کیږي . د سردار محمد داؤد (۱۹۶۳ – ۱۹۵۳ ع) د صدارت په
دوره کې لومړی د امریکا او وروسته د انګلستان او فرانسې له
حکومتونو څخه د اقتصادي او نظامي مرستو غوښتنه وشوه .
افغانستان یو ناپیلی هیواد و او د لویدیځ په نظامي ولو ټپلو کې
شامل نه و ، نو د دغو هیوادونو حکومتونو افغانستان ته د مرستې له
ورکولو څخه انکار وکړ . له دې وروسته افغانستان د لویې جرګې
له پرېکړې سره سم له شوروي اتحاد څخه مرستې وغوښتلې . شوروي
اتحاد د غرب او شرق ترمنځ د روان سړې جګړې د پالیسۍ په اساس ځان
افغانستان ته نږدې کړ او غوښتل یې مرستې یې ومنلې او په اقتصادي ،
نظامي او کلتوري ساحو کې یې له یو بل سره تړونونه او پروتوکولونه لاسلیک
شول . د دغو پروتوکولونو له تطبیق څخه څرګندیږي چې شوروي اتحاد
تل د ځان په ګټه غلطه استفاده کوله . د مثال په توګه په کلتوري
پروتوکول کې راغلي وو چې د شوروي اتحاد پوهنتونونه او تعلیمي
مؤسسې به افغاني محصلین د مارکسیزم لیننیزم د ایدیالوژۍ په درس
ویلو نه مجبوروي . اما په عمل کې دغه هیواد ټولو تعلیمي
مؤسسو به افغاني محصلین د کمونستي ایدیالوژۍ په لوست مجبورول
او شوروي اتحاد د نورو مرستو ترڅنګ افغانستان ته د کمونستي
ایدیالوژۍ ادبیات راليږل هم پیل کړل او په پټه کله یې یو شمیر
افغانان په چپي ایدیالوژۍ سمبال کړل .

## د داؤد خان دوره :

د سردار محمد داؤد ( ۷۸ - ۱۹۷۳ ) د جمهوریت د اعلان په اوریدو د افغانستان د مختلفو خلکو عکس العمل مختلف و . ځینو ویل چې د ده په کابینه کې د پرچم ګوند غړي شامل دي ، شاید چې د ده رژیم شوروي اتحاد ته ډیر نژدې شي ، په افغانستان کې کمونستي ایډیالوژۍ ته لار خلاصه کړي او اسلامي ډلې له بدې ورځې سره مخامخ کړي . ځینو ویل چې داؤد خان یو پیژندل شوی ډکتاتور شهزاده دی ، هغه به په افغانستان کې اقتصادي پرمختګ چټک کړي اما سیاسي آزادي نه ورکوي . دا نظر به کله کله په ټوکو کې هم ویل کیده چې داؤد خان په آبادۍ پوهیږي لاکن له آزادۍ سره هیڅ بلد نه دی . برعکس د افغانستان د اولس لوی اکثریت په دې نظر و چې داؤد خان د شاهي کورنۍ نامتو غړی دی . ده د افغانستان په نظامي او ملکي چارو کې تل په پاچا پسې دویم ځای درلودلی دی . د پاچا د تره زوی دی ، د ده راتګ محض د څیرې بدلون دی که د یو تره زوی ولاړ نو د بل تره زوی یې په ځای کیناست .

د داؤد خان په دوره کې اقتصادي پرمختګ او اداري تنظیم ته مخه شوه اما په سیاسي ډګر کې مطلق اختناق منځ ته راغی . هغه د چپیانو په نیت پوه شو او د پرچم د ګوند ټول غړي یې د حکومت له ملکي ارګانونو څخه وایستل او په پای کې یې له شوروي اتحاد سره هم روابط خړپړ شول . ده له ګاونډیو هیوادونو سره روابط ښه کړل ، د شوروي اتحاد برسیره د لویدیزې نړۍ له هیوادونو سره یې هم تماسونه زیات شول او د ناپییلو هیوادونو ډلې ته ډیر نژدی شو . په نتیجه کې شوروي اتحاد خپل پلوي ملکي او عسکري عناصرو ته د داؤد خان د

رژیم د رانسکوریدو امر ورکړ او له دې وروسته د افغانستان ملي تراژیدی پیل شوه چې تراوسه روانه ده .

## د مشرتابه خصوصیات :

افغاني ټولنه د دولت د سیاسي مشرتابه لپاره خپل ځانګړي خصوصیات لري چې له دغو ځانګړو خصوصیاتو او ارزښتونو سره سم د لوی احمدشاه ( ۱۷۷۳ - ۱۷۳۷ ) نه تر سردار محمد داؤد (۱۹۷۸) پورې د مشرتابه عنعنوي مؤسسه منځ ته راغلې ده . د افغاني ټولنې متخصصین وایي چې افغاني ټولنه له مختلفو قومونو او قبیلو څخه متشکله اسلامي ټولنه ده او په دې ټولنه کې د هر فرد هویت د هغه له کورنۍ ، قوم او قبیلې څخه څرګندیږي او د هر نامتو شخص په باره کې هر څوك دا پوښتنه کوي چې دغه شخص په څه ډول څوك دی او له کومې کورنۍ ، قوم او قبیلې سره ارتباط لري ؟ څه وخت چې یو شخص د مشرتابه له کورنۍ ، قوم او قبیلی سره خپل هویت تثبیت کړلای شي نو بیا وروسته هغه ته د درنې کورنۍ د غړي په نظر کتل کیږي او که څوك د هویت شرایط پوره نه کړلای شي نو دغه ډول شخص ته د مشرتابه د حیثیت قایلیدل ګران کار دی .

سره له دې چې د افغانانو په ټولو قومونو ، قبیلو او سیمو کې خانان ، بایان ، اربابان ، میران ، ملکان ، روحانیون ، مذهبي عالمان ، پوهان او لوی تجاران راغلي او تیر شوي دي ، لاکن د دغو مشرانو لوی اکثریت نه د پاچاهۍ دعوه کړې او نه یې ځانونه د تاج او تخت لپاره کاندید کړي دي . دوی د افغانانو په اجتماعي ، قبیلوي او قومي جوړښت او اړیکو ښه پوهیدل چې د هر مشر په مقابل کې بل مشر ، د یوې کورنۍ په مقابل کې بله کورنۍ ، د یوې قبیلې په مقابل کې بله

قبیله ، د یو قوم په مقابل کې بل قوم ، د یو نژاد په مقابل کې بل نژاد
او د یوې سیمې په مقابل کې بله سیمه وددریزي چې د اول افغان -
انګلیس جنګ یې ښه مثال دی . د شاه شجاع او انګریزانو د یرغل په
مقابل کې د افغانستان نامتو مشرانو محمد شاه خان بابکرخیل ،
میرمسجدي خان کوهدامني ، محمد عثمان خان تګاوي او امین الله
خان لوګري په ګډه د غازیانو مشرتوب کاوه ، دوی د شاه شجاع او
یرغلګر پوځ د سقوط اساسي شخصیتونه ګڼل کیدل ، خو بیا هم د دوی
له جملې څخه یو هم د افغانستان د عنعنوي مشرتابه د مقام دعوه ونه
کړه ، بلکې د غازیانو د لښکرو د مشرتابه لپاره یې د امیر دوست
محمد خان زوی وزیر اکبرخان راوآیست او تریایه دغو نامتو قهرمانانو د
دغه زلمي شهزاده ملاتړ وکړ .

که چیرې یو شخص راپورته شوی او د افغانستان د مشرتابه دعوه
یې کړې ده ، افغانانو د دغه شخص مشرتوب نه دی منلی او هغه یې په
زور د مشرتابه له ګدۍ څخه راکښته کړی دی چې ښه مثال یې د
۱۹۲۹ کال د امیر حبیب الله کلکاني د نه میاشتو لنډه دوره ده .

دا یو منل شوی واقعیت دی چې د لوی احمد شاه نه تر سردار محمد
داؤد پورې د دوه سوه او یو دیرش کلونو په اوږده موده کې د دُرانیانو
د مشرتابه مؤسسه د مختلفو داخلي او خارجي تجربو څخه تیره شوې او
منل شوې مؤسسه ده . سره له دې چې د دُرانیانو د قبیلې سدوزایانو او
بارکزایانو د مشرتابه لپاره یو د بل په ضد دسیسې او جګړې کړې دي ،
د تره زوی د تره زوی په مقابل کې او ورور د ورور په مقابل کې
راپورته شوی خو بیا هم مشرتوب د دغې قبیلې د مشرتابه د کورنیو
حق ګڼل شوی دی . د افغانستان تاریخ د دې واقعیت شاهد دی چې د
دې هیواد د مختلفو قبیلو او قشرونو مشرانو یو یا بل شهزاده

توګه ورځنی استفاده کوي . د انګریزانو لیکنې په مختلفو مرحلو پورې ارتباط لري . په لومړۍ مرحله کې هغه آثار منځته راغلي دي چې د هند په نیمه وچه د انګریزانو اداري او سیاسي پولې افغانستان ته نه وې رارسیدلې او د افغانانو او انګریزانو ترمنځ جګړې نه وې شوې . په دې مرحله کې انګریزانو په واقعي بڼه د افغاني ټولنې د پیژندګلو هڅې کولې او د دوی د لیکوالو میتود هم په واقعیتونو ولاړ و او د افغاني ټولنې د ځانګړو خصوصیاتو په باره کې یې سمه ارزیابي کوله . د دې آثارو له جملې څخه په ۱۸۰۸ کال کې په پیښور کې د شاه۔ شجاع دربار ته د الفنسټون په مشرۍ د بریتانیې د ختیز هند د کمپنۍ د هیئت راتګ او وروسته د افغاني ټولنې په مختلو اړخونو کتاب لیکل یې ښه مثال دی .

په ۱۸۳۹ کال کې انګریزانو په افغانستان یرغل وکړ او د لومړۍ افغان – انګلیس جګړې نه وروسته د افغانانو په باره کې د انګریزانو د لیك میتود هم بدل شو او د خپلو سیاسي اهدافو لپاره یې د افغاني ټولنې منفي ارزیابۍ ته ملا وتړله . دغو منفي ارزیابیو د لویدیزې نړۍ د نورو هیوادونو په یو شمیر لیکوالو او هم د هند او پاکستان په لیکوالو او څیړونکو پوره اغیزه کړې ده او د ځینو په لیکونو کې د دغې منفي ارزیابۍ اغیزه له ورایه ښکاري . د مثال په توګه وایی : په افغان اعتمادکول ډیر ګران کار دی . یو افغان به دې ډیر نژدې دوست یا وفادار نوکر وي خو کله چې ستا او د دغه افغان د قام ترمنځ شخړه پیدا شي نو بیا دغه افغان نه ستا دوستۍ ته ګوري او نه وفا دارۍ ته ، او سبا ته دې د سر دښمن دی : ډیر پاکستانیان هم د افغانانو په باره کې دغه مثال درته وایی . اما هغوی په دې نه پوهیږي چې د دوو ارزښتونو د ټکر په حالت کې یو افغان کوم ارزښت ته ترجیح ورکوي .

طرفداري کړې ده او د سولې او جګړې په وخت کې يې د يو با بل شهزاده په ملکي او نظامي چارو کې مختلف کارونه کړي دي او ترځېله وسه يې خپله وفاداري ښودلې ده .

په دې اوږده موده کې د افغانستان د عنعنوي مشرانو له جملې څخه هغه مشران کامياب کڼل شوي دي ، چا چې په اسلامي او افغاني ارزښتونو ټينګ عمل کړی دی ، د خلکو په عنعنوي ژوند کې يې لږه مداخله کړې ده ، د اولسونو ترمنځ يې د هر راز ژبني ، مذهبي او سيمه ييز تبعيض څخه ډډه کړې ده ، داخلي او خارجي ملي کشالې يې د لويو جرګو له لارې حل کړې دي او د هيواد د خپلواکۍ او ناموس څخه يې کلکه دفاع کړې ده . د دُرانيانو په اوږده موده کې يوازې شاه شجاع د افغانانو د منل شوو ارزښتونو خلاف په ۱۸۳۹ کال کې د بريتانوي هند د يرغلګر پوځ سره کابل ته راغی . سره له دې چې هغه د لوی احمد شاه نمسی او د افغانستان د تخت وارث و ، خو بيا هم د يو ګوډاګي په صفت د هغه راتګ افغانانو د خپلواک افغانستان او د خپلو قانونو لپاره لوی توهين وګاڼه . د هغه او يرغلګر پوځ په ضد د غزا اعلان وشو ، شاه شجاع مړ کړای شو ، يرغلګر پوځ له منځه ولاړ ، امّا د لوی احمد شاه په لوسوالۍ کې هيڅ توپير رانغی . د افغانستان د خلکو په باره کې يو سياسي پوه وايي : افغانان د بل هر قوم په تناسب د خپلواک او بلواک مشرتابه ترمنځ ښه توپير کولای شي . د دوی په ټولنه کې که يو مشر هر څومره بيکاره او دکتاتور هم وي لاکن که هغه د دوی له ارزښتونو سره سم خپلواک وي ، نو افغانان د دغه شان مشرتابه لپاره څه ناڅه د زغم حوصله لري . برعکس که يو مشر هر څومره هوښيار وي ، امّا که هغه لاس پوڅی وي افغانان د شاه شجاع غوندې د دغه ډول بلواک مشرتابه زغملو او منلو ته نه تياريږي . د

لاس پوڅي مشرتابه تحمیل ساده فارموله لري . لومړی د لاس پوڅي مشرتابه د شخصي ، کورني ، قبیلوي ، قومي ، فکري ، ایډیالوژیکي سیاسي ، اجتماعي او اقتصادي خصوصیاتو او د پو شمیر نورو خوښو ناخوښو ، ضعفونو او روابطو ارزیابي کیږي او وروسته د مشرتابه لپاره غوره کیږي . که یو شخص یا اشخاص په فکري او عقیدوي شکل ؕدا ومني چې څه یا څوک په د خپلو ملي ګټو په ځای د نورو د ګټو لپاره خدمت کوي ، د نورو پلانونه په عملي کوي او د نورو لپاره په د خپل هیواد ناموس او حیثیت له منځه وړي او د خپل هیواد خپلواکي په د نورو په پښو کې ږدي نو څله د باندنیو هیوادونو حکومتونه یا سیاسي ولې په دغه ډول لاس پوڅي مشرتابه سرمایه ګذاري کوي . هر اجیر مشرتابه روزل کیږي ایډیالوژي ورکول کیږي ، تعهدونه تري اخیستل کیږي او پلانونه ورکول کیږي . د بادار او نوکر لاره دوه طرفه ده . بادار هم خپل لاس پوڅي ته څه امتیازونه ورکوي . د بادار له خوا په رسمیت پیژندل کیږي ، وسلې او پیسې ورکول کیږي ، تبلیغ ورته کیږي ، د سیاست د وګړ قهرمان ترینه جوړیږي ، خبره یې منل کیږي او بالاخره د هیواد په لوړه سیاسي ګدۍ کینول کیږي چې د بادار ورکړل شوي پلانونه او پروګرامونه په خپل هیواد کې تکي په تکي عملي کړي .

## د خلق ، پرچم دوره او د افغانستان ستونزه :

د خلق ، پرچم د ګوند مشرانو د کال ۱۹۷۸ د ثور له کودتا نه مخکې او وروسته ځانونه د افغاني ټولنې په اجتماعي عنعنوي جوړښت او د دې جوړښت څخه د زیږیدلې روحیې په خصوصیاتو پوه نه کړل او له بلې خوا د پوهیدو چانس هم نه ورکول کیده ، ځکه چې د شوروي اتحاد د ګوندني مرکزیت په وجه مجبور وو ، چې د کرملین ایډیالوژي او

سیاسي نظر او د افغاني ټولنې په برخه کې د شوروي اتحاد تش په نوم پوهانو ، ګوند او د دولتي شبکو تحلیلونه ، لار ښوونې او حکمونه په پټو سترګو ومني او یوازې هغه څه تبلیغ کړي چې ورته ویل کیدل او ورکول کیدل . خبره له سره خطا شوه او په کوږ بنسټ ولاړ کوږ دیوال ترپایه کوږ ولاړ . شورویانو او د خلق ، پرچم ګوند مشرانو د افغانانو د عنعنوي ټولنې په اسلامي عقیده د مادي ایډیالوژۍ ، په مساوات طلبه اجتماعي جوړښت او روحیه د کارګرو ډکتاتوري ، د برترۍ په ضد روحیې د ناتجربه شوي مشرتابه او د خارج او د خارجیانو د فاینده ګانو په ضد د حساسیت په روحیه د شوروي اتحاد د غلبې او د دغه هیواد د نماینده ګانو د تحمیل پروسه پیل کړه چې په نتیجه کې د شوروي ټیپ او د افغانستان د عنعنوي ټولنې د اجتماعي او سیاسي ارزښتونو او مؤسسو ترمنځ ټکر په خونړۍ لویه ملي تراژیدۍ بدل شو .

هر پراختیا غوښتونکی هیواد پټ او ښکاره زیار باسي چې لومړی د لاس پوخي مشرتابه ماغزه پریمینځي او وروسته د هیواد په خلکو کې مذهبي او د وطن سره د مینې روحیه مړه کړي او خپله پالیسي داسې عیاروي چې د لاس لاندې هیواد ځوان نسل د خپل هیواد له تاریخ ، کلتور او ملي او مذهبي افتخاراتو څخه بیګانه کړي او یوازې د پراختیا غوښتونکي هیواد کلتور او ملي او مذهبي ویاړنې خپلې کړي . له بده مرغه هم د دې پالیسۍ له امله افغانستان د ګاونډیو هیوادونو د پراختیا غوښتونکو پالیسو ښکار شوی دی او د ثور له کودتا نه تراوسه د همدې ناوړه پالیسو په جنجال کې ښکیل پروت دی . شوروي او د هغه پلوي مشرتابه ترپایه زیار ویوست چې لومړی په افغانانو کې ملي او اسلامي روحیه مړه کړي او وروسته د شوروي اتحاد د تسلط لپاره لار اواره کړي .

د شوروي په پیروۍ کې د خلق ، پرچم مشرتابه هم ټول انساني تاریخ د زوړ او مترقي په نومونو په دوو برخو تقسیم کړ او رښتیني مترقي دوره یې د ۱۹۱۷ کال د بلشویك له انقلاب څخه شروع کړه او له شوروي اتحاد پرته د نورو هیوادونو ملي ، مذهبي ، اجتماعي ، کلتوري ، سیاسي او اقتصادي مؤسسې ورته زړې او د نړیوال کمونستي انقلاب په مقابل کې ډیر ژر له منځه تلونکې ښکاره کیدلې. دوی متدین افغانان د مرتجع ، وطنپال د تنګ نظره نشنلستانو ، غیرګوندي تعلیمیافته د غرب زده ګانو ، قومي مشران د فیوډالانو ، روحانیون د خارجي ایجنټانو ، بلکې د ټولنې مختلف قشرونه یې په مختلفو تورونو وټکول . دوی د افغانستان تاریخ جوړوونکي قهرمانان هم معاف نه کړل . د ځینو چپیانو له خولې نه دا هم اوریدل کیدل چې د سلطان محمود نه نیولې تر سردار محمد داؤد پورې ټول عنعنوي مشران د ارتجاع ، فیوډالانو او لوټمارانو په خدمت کې وو او د پښتنو په ضد چپیانو دا پروپاګنډه هم کوله چې لوی احمد شاه د نادر افشار غلام ، لوټمار او ظالم شخص و ، چې په خپله امپراتورۍ کې یې غیر پښتون قومونه په زور راښکیل کړل ، او په زور یې د افغانانو په امپراتورۍ کې وساتل .

دوی ټول اسلامي او عنعنوي اخلاقي معیارونه او ارزښتونه سرچپه غوندې کړل او هر څه یې د شوروي اتحاد او د نورو کمونستي هیوادونو له عینکو څخه لیدل . افغانانو دین ، وطن او ښځې ته د ناموس لوړ مقام ورکړی دی او له ناموس څخه دفاع او د ناموس د حفاظت په لار کې قرباني ورکول له ټولو څخه لوی افتخار ګڼي . د وطن سره مینه یې د ایمان برخه ده . د مشرانو درناوی ، د ښځو عفت ساتل ، په عهد ودریدل ، د دوستۍ په معیارونو عمل کول او په داسې نورو اخلاقي

ارزښتونو ټینګ وه‌ړیدل د افغاني ټولنې د کلتور نه جلا کیدونکې برخه
راروانه ده . په دې ټولنه کې د خلکو بیګانه رهبرولو ، اذیت ورکولو ،
وژلو ، تهمت لګولو ، دروغو ، تیر ایستلو او دا شان ډېرو نورو غیر
اخلاقي ارزښتونو ځخه کرکه کیږي او په بد نظر ورته کتل کیږي .
برعکس د سیاسي قدرت هوس د ایډیالوژۍ خاوندان دې ته تیار کړل
چې له هر څه ځخه لومړی د ناموس له لوړ ارزښت سره لوبه وکړي . د
دوی په نظر مذهب د ټولنې د وګړو لپاره د اپیم حیثیت درلوده او دوی
ته له وطن سره مینې او ښځې ته د ناموس درجه ورکول له لرغونو
فیوډالي ارزښتونو پرته بل مفهوم نه درلود . مقتران د ځالانو په ټومولو
غښتل کیدل . ښځه د آزادۍ او مساوات د شعارونو په نتیجه کې د
ناموس له لوړ مقام ځخه د جنسي خواهشاتو د تسکین د وسیلې ټیټې
سطحې ته راکښته کړلای شوه . دوسعی او وعدو ته د تاکتیکي
استفادې نومونه ورکړل شول . بیګانه رهبرول ، اذیت او وژل د ایډیالوژۍ
رب النوع لپاره ډېره اډنا نذرانه ګڼل کیدل . تهمت د افشاګرۍ د علمي
تیوري بڼه غوره کړه . دروغ او تیرایستل هدف ته د رسیدو اساسي
وسیلې وبلل شوې . د حق او بل د مال ترمنځ فرق له منځه ولاړ ،
بلکې ټول حرام شیان حلال او حلال شیان حرام وګڼل شول .

د ثور له کودتا سره جوخت د خلق ، پرچم ستمیانو د افغانستان د
ټولو اجتماعي او کلتوري قشرونو او سیاسي او مذهبي ګوندونو ،
تنظیمونو ، ګروپونو او حتی د کورنیو په ضد د طبقاتي مبارزې په نوم
د جنګ اعلان وکړ . د عنعنوي ټولنې د بدلون لپاره د ارتقایي پروسې
پرځای یې په ټولنه کې انقلابي عملیه تحمیل کړه ، همدا وجه وه چې د
تحمیل شوی ایډیالوژۍ او دکتاتورۍ په ضد په ټول هیواد کې د خود
بخودي مقاومت پروسه پیل شوه او مقاومت ورځ په ورځ میخ په

زیاتیدو شو . سره له دې چې د ثور د کودتا په باره کې باندنیو پوهانو دوه نظریې وړاندې کړې چې ځینو د ثور کودتا ملي انقلاب گاڼه او ځینو د انقلاب تر نتیجې پورې د انتظار توصیه کوله . امّا له هر چا څخه زیات په خپله افغانان د کودتا په ماهیت پوهیدل او دوی د پیل راهیسې د خلق ، پرچم مشران پیژندل او دوی ته د دغه مشرتابه ایډیالوژي ، د شوروي اتحاد په محور د افغانستان د څرخیدو هڅې ، د گاونډیو او ځینو اسلامي هیوادونو سره ضدیت او د لویدیزې نړۍ سره د دوی مخالفت پوره څرگند و . افغانان په دې هم پوهیدل چې د تحمیل شوي سیاسي سیستم په مقابل کې لاس تر زنې کیناستل لویه گناه ده او د دې گناه د ارتکاب په صورت کې دوی ملي خپلواکي ، ملي هویت ، ملي مؤسسې او ملي او مذهبي ارزښتونه له لاسه ورکوي او د تل لپاره به د مرکزي آسیا د اسلامي ټولنو غوندې د شورویانو او د کمونستي ډکتاتوریو لاس لاندې وي . د تحمیل شوې ډکتاتورۍ او د افغاني ارزښتونو ترمنځ د ټکر په نتیجه کې ټول هیواد په یو لوی زندان بدل شو . په بانډو ، کلیو ، ښارونو او کورونو باندې یرغل او د خلکو نیول ، وهل ، ځورول او وژل ورځنۍ معمول وگرځید او په پای کې محلي خوره بخودې مقاومتونه په یو لوی سرتاسري ملي مقاومت بدل شول .

شوروي اتحاد یرغل وکړ او د سور پوځ له راتگ نه وروسته د ځینو هیوادونو مشرانو افغانستان د شوروي اتحاد د نفوذ حوزه تسلیم کړه او ځینو خارجي پوهانو په ډاگه ویل چې افغانان به حتماً د شوروي اتحاد د سور پوځ په مقابل کې ماتې خوري او افغانستان به حتماً د شوروي اتحاد په پنجو کې پریوځي . دوی په دې نه پوهیدل چې د شوروي اتحاد یرغل او د افغانانو مقاومت د دوو قومونو ترمنځ جگړه نه وه ،

بلکې په واقعیت کې دوو مختلفو قومونو د متضادو اجتماعي او سیاسي ارزښتونو او مؤسسو ترمنځ نه پخلا کیدونکی ټکر و . د شوروي اتحاد لپاره د افغانستان نیول او د افغانانو لپاره د شوروي سور پوځ ایستل او د اجیر مشرتابه رانسکورول د پرستیږ جګړه وه ، ځکه چیرې چې سور پوځ ولاړ بیا ترینه نه وتلو او کله چې د افغانستان خاورې ته یرغلګر راغلي دي افغانانو ترپایه ورسره جګړه کړې ده او هر یرغلګر یې له خپلې خاورې څخه وتلو ته مجبور کړی دی . سره له دې چې د یرغلګرو او افغانانو ترمنځ جګړه اوږده او زړه دردوونکې وه ، لاکن ټولې نړۍ ولیدل چې دیرغلګرو سور پوځ ماتې وخوړله ، د شوروي لویه امپراتوري ړنګه شوه او د سور پوځ او سرې دکتاتورۍ طلسم د افغانانو په لویه قربانۍ مات شو . په دې اوږده او ناانډوله جګړه کې د شوروي اتحاد یرغل او د افغانانو ټینګ مقاومت ځینې هیوادونه د افغانانو ملاتړ ته راوهڅول . د افغانستان په کشاله کې سوشلیستي او لویدیز بلاکونه د یو بل پرضد ودریدل ، د وارسا او ناتو غړي هیوادونه داخل شول او د دوو بلاکونو قوي ارګانونه کې . جي . بي او سي . آی . ای او ورسره تړل شویو نورو جاسوسي شبکو د خپلو بلاکونو په ګټه پټو او ښکاره فعالیتونه پیل کړل .

## د افغانانو مقاومت :

په دې جګړه کې د افغانانو او د شوروي ضد هیوادونو ترمنځ د یووالي او بیلوالي دواړه خصوصیات موجود وو . افغانان مجبور وو چې یرغلګر وباسي او اجیر مشرتوب رانسکور کړي او د خپل هیواد ملي او اسلامي هویت اعاده کړي . دوی په هیڅ قیمت نه غوښتل چې « د شوروي مشر ورور » ځای دې بل مشر ، یو بلواک مشرتابه دې بل بلواك

مشرتابه او یوه ډکتاتوري دې د بلې ډکتاتورۍ ځای ونیسي . په پیل کې د شوروي اتحاد مشرتابه ټینګه اراده کړې وه چې په ټول قوت او په هر قیمت چې وي په افغانانو تحمیل شوی بلواك مشرتابه په قدرت کې وساتي ، لاکن افغانان په هیڅ قیمت د دې پریکړې منلو ته تیار نه وو . افغانانو په ابتدایي وسلو او وسایلو خود بخودي مقاومت پیل کړی و او د یرغل نه وروسته هغوی مجبور وو ، چې د شوروي اتحاد د عزم او پرمختللي نظامي ماشین د مقابلې لپاره له نورو هیوادونو څخه وسلې او د جهاد نورې اسانتیاوې ترلاسه کړي . سره له دې چې د افغانستان په برخه کې د مرسته کوونکو هیوادونو پالیسیو جلا بڼې درلودلې ، امّا د ټولو ستراتیژې یوه ده ، ټولو غوښتل چې شوروي اتحاد د افغانانو له سخت مقاومت سره مخامخ کړي ، تاواني یې کړي او د دې هیواد د نیولو او رالاندې کولو پلانونه شنډ کړي . چینیانو دغه یرغل د چین محاصره وګڼله او د چین ، شوروي د اړیکو د عادي کولو لپاره یې د نورو شرایطو په جمله کې له افغانستان څخه د شوروي عسکرو په ایستلو هم ټینګار کاوه . د لویدیزو او د سیمې هیوادونو نظریې هم مختلفې وې . ځینو ویل چې افغانستان د شوروي اتحاد د نفوذ تاریخي حوزه نه ده ، روسانو د لومړي ځل لپاره له خپلې حوزې څخه تیری کړی دی او دغه هیوادونه افغانستان د شوروي د نفوذ د حوزې په حیث منلو ته چمتو نه دي . ځینو ویل چې دغه یرغل د سیمې د تیلو تولیدوونکي هیوادونه ، تجارتي لوېې لارې ، د لویدیز اقتصادي سیستم او په سیمه کې د لویدیز نظامي بیلانس د لوی خطر سره مخامخ کړی دی . ځینو د افغانستان کشالې ته د ډکتاتورۍ په ضد د خپلواکۍ د نهضت په نظر کتل او د دوی لپاره محض یوه انساني معضله وه او ځینو دغه یرغل د اسلامي او سیمې د هیوادونو د

خپلواکۍ او استقلال لپاره لوی خطر ګاڼه . د ټولو هیوادونو په پرتله د شوروي اتحاد د پرېغل حماقت امریکا ته یو طلایي چانس په لاس ورکړ چې د لومړي ځل لپاره خپل نړیوال رقیب په افغانستان کې راښکېل کړي ، په جهاني سطحه یې بدنام کړي ، تاواني یې کړي ، زخمي یې کړي او بالاخره د ویتنام بدل ترینه واخلي . د جګړوال محمد یوسف د لیکنې په اساس د دې کار ماموریت د امریکې جاسوسي شبکې سي . آی . ای ته وسپارل شو چې د پاکستان د نظامي شبکې آی . ایس . آی سره ګډ عملیات پیل کړي او دوام ورکړي . دې دواړو شبکو خپل ترمنځ د عملیاتو دندې ووېشلې او خپل ترمنځ یې د کار ، فعالیت او صلاحیت حد وټاکه . پاکستاني مقاماتو په امریکایانو پاکستان د شوروي اتحاد په ضد د لومړۍ کرښې د سنګر په حیث ومانه او دایې هم په امریکا ومنله چې امریکا او د هغې متحدین به د افغانانو د جهاد په دوران کې پاکستان هم په اقتصادي او نظامي لحاظ پیاوړي ساتي او هم د جهاد په نوم وسلې ، پیسې او نور جهادي تسهیلات به پاکستان ته ورکوي او یوازې آی . ایس . آی به دغه شیان په افغانانو تقسیموي په نتیجه کې د امریکا او د هغې د متحدینو او د پاکستان د پاندنیو چارو وزارتونو محض تشریفاتي بڼې غوره کړې او د دې هیوادونو سیاسي ، اداري او اقتصادي ارګانونو یوازې هغه څه د افغانستان په باره کې ویل او کول څه چې ورته د دې هیوادونو شبکو ویل .

## د جهاد مشرتوب :

د جهاد د مشرتابه مسأله له ټولو څخه مهمه موضوع ده . د افغانانو لوی اکثریت هیله درلوده چې د جهاد پلوي هیوادونه او په مشخص ډول پاکستان به د شوروي اتحاد له خوا د تحمیل شوي مشرتابه

برعکس د جهاد د مشرتابه مسأله د افغانانو ملي عنعنې او خوښې ته پرېږدي چې دغه مشرتابه د افغانستان مختلفې قبیلې ، قومونه او نژادونه په واحد سیاسي پلان او د نظامي انسجام په چوکاټ کې منظم کړلای شي . د افغانانو هیلی ته اهمیت ورنه کړلای شو . د پاکستان مشرتابه او د آی . ایس . آی شبکې اووه گوندونه او تنظیمونه په رسمیت وپیژندل او له حده زیاتې وسلې او پیسې او د جهاد لپاره ټولې اسانتیاوې یې د دوی په لاس ورکړې او مجاهدین او مهاجرین یې مکلف کړل چې د دوی د گوندونو او تنظیمونو غړیتوب واخلي او ځانونه په دې گوندونو او تنظیمونو کې تنظیم کړي . مجاهدینو او مهاجرینو ته بله لار نه وه او دوی مجبور وو چې د جهاد او مهاجرت د تسهیلاتو په خاطر د یو یا بل د بیرغ لاندې ودرېږي . له دغو اوو گوندونو او تنظیمونو نه غیر نور ټول پخواني او د جهاد په دوره کې منځ ته راغلي گوندونه او گروپونه غیر رسمي اعلان شول او ځینو ته د نامطلوبو عناصرو نومونه ورکړل شول . سره له دې چې ایران د عراق سره په جگړه بوخت و ، خو بیا هم دغه هیواد ۹ تنظیمونو ته رسمیت ورکړ او د دغو تنظیمونو له لارې یې په افغانستان کې د خپل نفوذ د حوزې د پراختیا لپاره هلې ځلې کولې . سره له دې چې په پاکستان کی اووه گوندونه او تنظیمونه جوړ او په رسمیت وپیژندل شول خو بیا هم پاکستاني مقاماتو د څلورو گوندونو او درې تنظیمونو ترمنځ د سکه او ناسکه سلوك کاوه او د نامتو انگلیس لیکوال جارج ارول په دې فارموله چې « ټول مساوي دي خو ځینې د ځینو په مقایسه ډېر مساوي دي » پوره عمل کیده . څلورو ډېر مساوي گوندونو ته هر څه ډېر او پریمانه ورکول کیدل ، ډېر امتیاز ورکړل شول او څلور ډېر مساوي گوندونه د درې محض مساوي تنظیمونو په تناسب همیش په اکثریت

په دې کې هيڅ شك نشته چې يو افغان د بل هر قام د وګړي په تناسب د دوستۍ او وفا دارۍ په ارزښت ډېر ښه پوهيږي او داسې ډېرې کيسې شته چې افغان د خپل دوست او بادار لپاره ډېرې قربانۍ ورکړې دي ، اما يو افغان په دې هم پوهيږي چې د هغه وجود او هويت د قام له وجود او هويت څخه جلا هيڅ اهميت نه لري او څه وخت چې د افغان د شخصي دوستۍ او وفا دارۍ او د هغه د قام د وجود او هويت ترمنځ ټکر پيدا کيږي نو بيا هغه د خپل ځان په ځای د قام په ننګ ودريدو ته وردانګي .

د شلمې پيړۍ په وروستۍ نيمايی کې د لويديزو هيوادونو يو شمير ټولنپوهان ( سوشيالوجستان ) وګړ پوهان ( انتروپالوجستان ) ارکيالوجستان ، تاريخ پوهان او د اجتماعي علومو مختلف څيړونکي افغانستان ته راغلل او دوی د هيواد په مختلفو سيمو کې څيړنې وکړې.

د دوی د څيړنو ميتود علمي و او د افغاني ټولنې په مختلفو اړخونو يې علمي تبصرې او تحليلونه کړي دي خو بيا هم دوی خارجيان وو ، په خارج کې روزل شوي وو او د هر خارجي لپاره دا يو مشکل کار دی چې هغه دې د افغاني ټولنې په اجتماعي جوړښت ، اجتماعي اړيکو او اجتماعي روحياتو پوره پوه شي او يا دې د دې ټولنې د پيچلو ارزښتونو ، کودونو او عنعنو احساس داسې وکړي ، لکه څنګه چې يو افغان يې کولای شي .

## افغان ليکوال :

په افغاني ټولنه يو مشخص سياسي سيستم تسلط درلود او د دې سيستم په اساس ځيني نامتو پوهان په دربار پورې تړل شوي وو او هغوی محض د دربار په حکم ليکني کولې . د دغه سيستم د لاندې

کې وساتل شول .

د ډیر مساوي ګوندونو د مشرانو په منځ کې قدرت ته د رسیدو لپاره خپلمنځي رقابت موجود و او شته خو بیا هم د ایډیالوژۍ ، حزب سالارۍ او د سیاسي قدرت د انحصار په مسایلو کې ګډ خصوصیات لري . د ایډیالوژۍ په لحاظ دوی د مسلمان امت یا اسلامي هیوادونو ترمنځ سیاسي سرحدونه په رسمیت نه پیژني . د دې ګوندونو مشرانو دغه مساله په خپلو ویناګانو ، مصاحبو او لیکنو کې په ډاګه څرګنده کړې ده . د یو ګوند مشر په یوه غونډه کې په خپله وینا کې وویل : « مونږ د کلمة الله د سر لوړۍ لپاره جهاد کوو . زموږ جهاد د افغانستان تر آزادۍ پورې محدود نه دی . مونږ به د افغانستان له آزادۍ نه وروسته د مرکزي آسیا مسلمانان آزادوو ، د کرملین په دیوال به بیرغ ودروو ، د یورپ سینه به څیرو او د ټولې نړۍ خلک مسلمانول زمونږ اسلامي فریضه ده .... » هم د دې ګوند بل مشر په یوه مصاحبه کې ویلي دي : « که مونږ سیاسي قدرت واخیست ، مونږ د پاکستان او افغانستان ترمنځ په تورخم پروت ځنځیر په رسمیت نه منو . مونږ به د تورخم ځنځیر د آمو دریاب په غاړه ږدو . د پاکستان او افغانستان په نومونو دوه هیوادونه به له منځه ځي . یو هیواد به ترینه جوړوو او د افغانستان او پاکستان په ځای به د دې هیواد نوم اسلامستان وي .... »
بل مشر د لاهور د نیشن ورځپاڼې سره په یوه مرکه کې وویل : « مونږ به کوشش کوو چې پاکستان او افغانستان یو هیواد شي . که دغه کار ونه شو نو مونږ به پاکستان او افغانستان په کنفدرانسیون بدل کړو ... » د بل ګوند یو نطاق د نیوزله اخبار سره ویلي دي : « زمونږ د ګوند مرام څرګند دی . مونږ به کوشش کوو چې د پاکستان او افغانستان روابط دومره نژدې کړو چې په پای کې دغه دواړه هیوادونه

په يو هيواد بدل کړو ... » .

د دې ګوندونو مشران همیشه وايي چې يوازې د دوی ګوندونه په رسمیت پیژندل شوي دي ، د دوی ګوندونو جهاد کړی دی ، د دوی ګوندونو قرباني ورکړې ده او د دوی د ګوندونو نه غیر بل هیڅ ګوند ، تنظیم ، ګروپ او شخص په افغانستان کې د سیاسي فعالیت حق نه لري.

په بل عبارت دوی د افغانستان ټولې چارې د نهو ګوندونو او تنظیمونو د انحصار لاندې راوستل او ساتل غواړي .

ډیر افغانان او خارجیان تل دا پوښتنې کوي چې دغه ټول ګوندونه او تنظیمونه د اسلام په نوم جوړ شوي دي ، د اسلام په نوم يې ګډ جهاد کړی دی او ټول په افغانستان کې اسلامي رژیم غواړي نو بیا ولې دوی خپل ترمنځ په مخالفت او جګړه اخته وو او اخته دي ؟ دې سوالونو ته بشپړ ځوابونه ویل د ډیرو عواملو څیړلو ته اړه لري او په دې موضوع له حده زیاتې لیکنې هم شوې دي . دلته مونږ د ډیرو عواملو له جملې څخه يو څو مهمو نکتو ته په ډیر لنډ ډول اشاره کوو :

۱ - لکه چې مخکې ورته اشاره شوې ده ، د افغاني ټولنې ځلور خصوصیات :

۱ - اسلام ؛ ۲ - مساوات طلبه اجتماعي جوړښت او روحیه ؛ ۳ - له داخلي او خارجي پراختیا غوښتنې سره مخالفت ؛ ٤ - او د باندنیو د نماینده ګانو په ضد حساسیت په متوازي ډول د خلق - پرچم په ضد وو . برعکس په دې کې هیڅ شك نشته چې اوسني ۹ ګوندونه او تنظیمونه د اسلام په نوم جوړ شوي دي ، مشران يې مسلمانان دي ، د اسلام په نوم يې ګډ جهاد کړی دی او د افغانستان په اسلامي ټولنه کې اسلامي حکومت غواړي له پورتنیو څلورو فکتورونو څخه يوازې اسلامي فکتور د دوی په ګټه دی او نورو درې فکتورونو ورته تاوان

رسولي دی .

الف : دوی هم د افغاني ټولنې په مساوات طلبه عنعنوي جوړښت او روحیه ګوندي ډکتاتورۍ او انحصار تحمیلوي چې د تاریخ په اوږدو کې افغاني ټولنه تل هر ډول دکتاتورۍ او انحصار په ضد واقع شوې ده . د دې هیواد ځینو شهزادګانو د ډکتاتورۍ د تحمیل لپاره ډیر کوششونه کړي دي . امّا د دوی ټولې هلې ځلې د افغانانو له سخت مقاومت سره مخامخ شوې دي چې ښه مثال یې د امیر عبدالرحمن خان ( ۱۹۰۱ – ۱۸۸۰ ) دوره ده . سره له دې چې امیر عبدالرحمن خان ته یې دامیرالمؤمنین خطاب ورکړی و ، خو افغانانو د ده خطاب او ډکتاتوري نه منله .

ب : په دې کې هیڅ شك نشته چې افغانان یو مسلمان ملت دی خو دوی د انګریزانو او روسانو نه مخکې د خپلې آزادۍ او خپلواکۍ لپاره له ګاونډیو هیوادونو ، لکه : د ایران او د هند د مغلو مسلمانانو امپراتورانو سره هم ډغرې وهلې دي او د دې هیوادونو امپراتورانو ته یې هم د تسلیم سرونه نه دي ټیټ کړي . افغانان یوازینی ملت دی چې د بل هر قوم په تناسب د دوستۍ او نوکرۍ ترمنځ په فرق ډیر ښه پوهیږي . اوس هم د ګاونډیو مسلمانو هیوادونو سره دوستۍ ته تیار دي لاکن نوکري یې نه مني .

ج : هیڅوك دا نشي ویلای چې د خلق ، پرچم مشران افغانان نه وو . دوی افغانان وو او اوس هم ډیر خلك په افغانستان کې د دوی د ځای ، قوم او ژبو په باره کې پوره معلومات لري او په اسانه درته ویلای شي چې فلانی د فلاني ځای دی ، فلاني قوم ته منسوب دی او په فلانۍ ژبه ګړیده . اصلي سوال دا دی چې افغانان وو . نو بیا ولې افغانان د دوی په ضد راپورته شول ؟ د سوال ځواب ساده دی . دوی

افغانانو وو خو د دوی ایډیالوژي پردی وه . د دوی ګوند د نورو له خوا جوړ شوی وو ، د نورو له خوا ورته پلانونه او پروګرامونه ورکول کېدل ، د نورو له خوا تقویه کېدل او افغانان یې وژل او نور یې ملګري ګڼل . په واقعیت کې دوی د افغانستان او افغانانو په ځای نورو ته خدمت کاوه . له خپلې ټولنې څخه مطلق بیګانه شوي وو او د دوی دغې بیګانه ګۍ افغانان شهیدان کړل ، افغانستان یې په کنډوالو بدل کړ او معصوم افغانان یې د پردیو په لاس ورکړل چې تراوسه عرب او عجم وروباندې لوبې کوي .

همدا شان هیڅوک دا نشي ویلای چې د ۹ ګوندونو مشران افغانان نه دي . دوی افغانان دي او په افغانستان کې د هر یوځای ، قوم او ژبه معلومه ده . له دوی څخه ځینې ګوندونه او تنظیمونه په ګاونډیو هیوادونو کې جوړ شول او ځینې په دې هیوادونو کې تقویه شول . دوی ته پریمانه وسلې ، پیسې او جهادي تسهیلات ورکړل شول ، قوماندانان ورته وروزل شول ، تقویه شول او د شهرت خاوندان شول او د افغانستان سیاسي واکې هم د دوی په لاس ورکړل شوې . دوی هم د بیګانه ګۍ په وجه خپل افغانان د دښمنانو په نومونو وژني او پردیو ته وروڼه وایي .

۲ – په علمي او شعوري توګه د هغې ټولنې خلك په مذهبي ، سیاسي او اجتماعي مسایلو ښه پوهیږي چیرې چې د سواد اندازه ډیره وي ، تعلیمي مؤسسې منځ ته راغلې وي او ټولنې په زیر بنایي لحاظ له عنعنوي شرایطو څخه د پرمختلونکې ټولنې په لور څه نا څه بدلون موندلی وي . د سواد ، اقتصادي ژوند او سیاسي تجربې له مخې افغانستان د ډیرو وروسته پاتې هیوادونو په ډله کې راځي او د دې هیواد د لوی اکثریت اجتماعي ژوند تراوسه په عنعنوي روابطو او ارزښتونو ولاړ دی . په عنعنوي ټولنه کې انقلابي ایډیالوژیکي او

ګوندي سیاست کول ډیر ګران کار دی . سره له دې چې د خلق ، پرچم مشرتابه ډیر کوښش وکړ چې په افغانستان کې د ګوند د دسپلین له لارې د خلکو عنعنوي روابط او ارزښتونه ورمات کړي او خپلې بین المللي ایډیالوژۍ ته لار اواره کړي ، لاکن د افغاني ټولنې د عیني اجتماعي روابطو قوت د دوی ایډیالوژۍ ته محلي بڼه ورکړه . ه دې پرځای چې د دوی بین المللی ایډیالوژي په افغاني ټولنه کې بدلون راولي برعکس د افغاني ټولنې قبیلوي او ژبني روابطو د دوی په بین المللي ایډیالوژۍ سمبال په ټولو چپي ګوندونو کې تغییر راووست او د چپیانو ګوندونه او ډلې یې په سیمو او ژبنیو روابطو وویشلې . د مثال په توګه د خلق د ډلې اکثریت اطرافي پښتانه وو ، د پرچم د ډلې اکثریت ښاري دري ژبي عناصر وو ، په شعله جاوید کې د ښاري او اطرافي اقلیتونو اکثریت راټول شوي وو او د ستم ملي لوی اکثریت د بدخشان او ځینې د شمال له ځینو سیمو څخه وو .

سره له دې چې د خلق ، پرچم او د شوروي اتحاد د سور پوځ په ضد جهاد افغانستان شموله و ، خو په واقعیت کې د افغانستان ټولو قومونو په خپلو سیمو کې جګړه کوله نو له دې امله د جهادي ډلو ، ګروپونو او د دوی قوماندانانو محلي بڼې درلودې او هره قبیله او قوم په خپلو سیمو کې په مقاومت بوخت و . همدا وجه ده چې د افغاني ټولنې قبیلوي ، قومي او ژبني جوړښت د جهادي ګوندونو او تنظیمونو د مشرتابه او غړو ترمنځ په ایډکو ژوره اغیزه درلوده او اوس یې هم لري ، د مثال په ډول د حزب اسلامي ، محاذ ملي اسلامي ، حرکت انقلاب اسلامي ، اتحاد اسلامي . جبهه نجات ملي او حزب اسلامي (مولوي خالص صاحب) مشران پښتانه دي او د دوی د ګوندونو او تنظیمونو د غړو لوی اکثریت هم پښتانه تشکیلوي . همدا شان د

جمعیت اسلامي مشر تاجك دی او د هغه ډ گوند د غړو لوی اکثریت هم دري ژبي دي . د وحدت اسلامي او حرکت اسلامي ډ گوندونو او تنظیمونو مشران او د دوی د غړو اکثریت شیعه او هزاره دي او د جنبش ملي اسلامي د تنظیم مشر ازبك او د تنظیم د غړو لوی اکثریت ازبك دی . غه وخت چې د نجیب الله د رژیم د سقوط نه وروسته ائتلاف جوړ شو ، په دې ائتلاف کې جمعیت ، اتحاد ، د دوستم ملیشه د پرچم یوې برخې د شعلهٔ جاوید او ستم ملي ځینو غړو او حتی د خلق گوند ځینو دري ژبو گډون وکړ . او حزب اسلامي ، خلق گوند او د پرچم د یوې برخې په ضد یې سخت دریځ ونیو . نجیب الله یې توقیف کړ او د پرچم ځینی مشران یې آزاد پریښوول . د ائتلاف په پیل کې دا تبلیغ هم کیده چې د دوه نیم سوه کلونو نه وروسته غیرپښتون قومونو سیاسي قدرت ترلاسه کړی دی او په هره وسیله چې وي دغه سیاسي قدرت دې حتماً د غیر پښتنو په لاس کې ټینگ وساتل شي . د کابل د ائتلاف ترمنځ درز او روانو جگړو ته هم د قومي امتیازاتو په نوم الې ورکړل شوه . د حزب اسلامي ، جنبش ملي اسلامي او وحدت اسلامي مشران د جمعیت په مشرانو تور لگوي چې د جمعیت مشران غواړي دري ژبو او په مشخص ډول د خپلو سیمو خلکو ته هر ډول سیاسي ، اقتصادي او نظامي امتیازات ورکوي او د افغانستان نور قومونه محرومول او د خپلې سلطې لاندې ساتل غواړي . له دې الند تفصیل څخه مقصد دا دی چې د ځینو گوندونو مشران د ایډیالوژۍ له مخې د افغاني ټولنې له قبیلوي ، قومي ، ژبنیو او سیمه ییزو واقعیتونو څخه سترگې پټوي او په دې ټینگار کوي چې د ثور د کودتا او اسلامي انقلاب په نتیجه کې د افغاني ټولنې په ژوند کې ژور بدلون راغلی دی او د دوی په نظر اوس زاړه روابط او زړې مؤسسې ، لکه د قومي مشرانو نفوذ ، د لویې

جرګې اهمیت او نور ډیر شیان له منځه تللي دي . د اجتماعي علومو د پوهانو په نظر ژور بدلون یوه ډیره پیچلې عملیه ده او تش د خولې په خبرو او شعارونو بدلون منځ ته نه راځي . دا واقعیت دی چې په تیرو شپاړسو کلونو کې څه نوي فکتورونه منځ ته راغلي دي اما دا هم یو واقعیت دی چې افغاني ټولنه د پخوا غوندې په قبیلوي او قومي روابطو ، عنعنوي ارزښتونو او سیمه ییزو اړیکو چلیږي او ترهغې به دا واقعیت دوام کوي څو چې د افغاني ټولنې په اقتصادي ، اجتماعي او سیاسي ژوند کې واقعي ژور بدلون نه وي راغلی او دغه بدلون د ټولنې قبیلوي ، قومي او ژبنیو روابطو ته تغییر او نوی شکل نه وي ورکړی .

## نوي واقعیتونه :

سربیره له دې چې د افغانستان د خلق ، پرچم رژیم نظامي ، سیاسي او اقتصادي قوت د شورویانو په خدمت کې و ، بیا هم د افغانستان ټولو قومونو نړۍ ته په عمل کې اثبات کړه چې افغانستان د ټولو قومونو مشترک کور دی او د خپل کور دفاع د ټولو قومونو ګډه ملي او دیني وظیفه ده . په افغانستان ډیر یرغلونه شوي دي . د تیرو یرغلونو او د شوروي د یرغل ترمنځ توپیر دا دی چې د تیرو یرغلونو جنګي وسایل ساده وو ، په مشخصو لارو راتلل ، او د لارو په اوږدو کې به د میشتو قبیلو او قومونو سره جګړې کولې . د مثال په توګه د برتانوي هند پوځ درې څله د جنوب او ختیز له خوا وو په افغانستان یرغل وکړ او د دغو یرغلونو په ضد ډیرې نښتې او مقاومتونه د پښتنو په سیمو کې شوي دي . برعکس د شوروي اتحاد پوځ په ځمکه او هوا یو شان په افغانستان یرغل وکړ . د خلق ، پرچم او شوروي اتحاد پوځ په ډیرو پرمختللو عصري وسلو او وسایلو سمبال و او د ثور د

کودتا له پیل نه د نجیب الله د رژیم ترسقوط پوري د شرق نه تر غرب
او د شمال نه تر جنوب پورې د افغانستان ټول قومونه په محلي جګړو
کې ښکیل شوي وو او د ټول هیواد په ټولو سیمو کې ګډ مقاومت په
شدت روان و . په دې خونړي مقاومت کې ټولو قومونو ګډه برخه
واخیسته ، ګډ جهاد یې وکړ او ټولو قومونو مشترکه قرباني ورکړه .
اوس د افغانستان یو قوم هم دا دعوه نشي کولای چې دوی قرباني
ورکړې ده او نورو نه ده ورکړې .
د تیر جهاد په اوږدو کې د واحد افغانستان او سیمه ییز قومي
احساس دوه متوازي عملیو وده وکړه . دا د افغانستان په تاریخ کې
لومړی ځل و ، چې د دې هیواد ټولو قومونو په ګډه د ګډ دښمن په
ضد سرتاسري مقاومت وکړ . د دې اوږد مقاومت په دوران کې تګ
راتګ زیات شو ، یو قوم د بل قوم ، د سیمو مشران ، قوماندانان ،
دیني علما او خلک له نږدې نه وپیژندل او د دې هیواد په تاریخ کې په
ټولو قومونو کې د واحد افغانستان ، افغانیت او افغان احساس
ډیر پیاوړی شو او ټولو قومونو د افغانستان ، افغانیت او افغان په
نومونو د ویاړ احساس پیل کړ . له بلې خوا د جهاد په موده کې هر
قوم په خپله سیمه کې د دښمن د یرغل په ضد مقاومت کړی دی او دغو
ټولو جنګو او نښتو محلي بڼې درلودې . د دې محلي مقاومتونو له
امله اوس د هرې سیمې قوم خپلې جهادي کیسې ، خپل جهادي
قهرمانان او خپل جهادي قوماندانان راپیدا کړي دي او په نتیجه کې د
افغانستان په ټولو سیمو کې قومي هویت ، قوم ته د وفادارۍ او له
قومي ګټو څخه د دفاع شعور د بخوا په تناسب زیات شوی دی . همدا
شان د افغانستان په داخلي چارو کې باندني فکتور هم د زمان او
تخنیک په لحاظ ژوره اغیزه کړې ده چې ښه مثال یې د ۱۸۳۹ کال د

برتانوي هند او بیا له شوروي اتحاد سره د افغانانو د جګړو دوه جلا عملیی دي . د برتانوي هند د یرغل په مقابل کې د خپل هیواد دننه خپلواك افغان مشران سره جرګه شول ، د غزا اعلان یې وکړ ، جګړې ته یې دوام ورکړ او ترپایه افغانان او د برتانوي هند پوځ دوه جګړه ماري ډلې وې . په دغه مقاومت کې د جګړې او سولې واك د افغانانو په لاس کې و او د دې دوو جګړه مارو ډلو ترمنځ دریمګړې ډلې وجود نه درلود . برعکس د خلق ، پرچم د رژیم او د شوروي اتحاد د یرغل په مقابل کې عرب او عجم د افغانانو په مقاومت کې دخیل شول او په ډیر لږ وخت کې د افغانانو د خودبخودي مقاومت واك د پردیو په لاس ورغی . پردیو د جهاد پلانونه جوړ کړل ، مشران او قوماندانان یې په خپله خوښه وټاکل ، د روزلو پروګرامونه یې عملي کړل ، د وسلو او پیسو د ویش او د مجاهدینو او مهاجرینو په اړوند ټول کارونه یې په خپل لاس کې ټینګ ونیول . د دوی خوښه وه چې څوك پورته کړي ، څوك راکښته کړي ، څوك له صحنې نه وباسي او چا ته واك ورکړي او څوك بیواکه کړي او څوك د خپل هیواد په مسایلو کې له برخې اخیستو څخه محروم وساتي . له بده مرغه د دې پالیسۍ په وجه د افغانانو په کورنیو ، خیلونو ، قبیلو ، قومونو ، نژادونو ، ژبو او په سیمو ویشل شوې ټولنه لا پسې په ګوندونو ، تنظیمونو ، ګروپونو او وړوکو وړوکو ډلو وویشل شوه چې په نتیجه کې هر راز شخړې او تریکنۍ منځ ته راغلې او ډیرې شخړې په ډیرو دښمنیو او جګړو بدلې شوې چې دغه واقعیت تراوسه د روانې ملي تراژیدۍ بڼه غوره کړې ده .

## د ملګرو ملتونو په مرسته سولې ته رسیدل لومړی ضرورت دی :

په افغانستان کې د سولې لپاره په ملي او بین المللي سطحه

کوششونه شوي دي او کيږي . له هيواد نه د باندې د مجاهدينو حکومتونه جوړ او رنګ شول . د داخل او خارج ديني علما راغلل او لاړل . قوماندانانو هڅې وکړې . د ملګرو ملتونو د عمومي سکرتر نماينده ښاغلی بينن سيوان د سولې پلان تخريب شو . د پيښور ، اسلام-آباد او جلال آباد د معاهدو په اساس جوړو شوو حکومتونو هم څه نتيجه ورنه کړه . د دريو کلونو په اوږده موده کې کابل لوټ شو ، د بمونو ، توپونو او راکټونو خوراك شو ، په زرګونو آواره شول ، مړه شول ، ټپيان شول خو بيا هم د سولې رڼا نه ليدل کيږي .

ډير افغانان د دې سوال سره مخامخ دي چې د دوی په هيواد کې سوله ولې منځ ته نه راځي ؟ له ډيرو افغانانو او خارجيانو څخه د سولې د نه راتګ په باره کې ډيرې تبصرې اوريدل شوې دي ، په ټولو خبرې کول اوږد بحث غواړي ، د ټولو له جملې څخه د يو څو مهمو تبصرو لنډيز وړاندې کيږي :

۱ – ځينې وايي : د رواني تراژيدۍ اساسي عامل د افغاني ټولنې د مشرتابه نشتوالی دی . د پخواني پاچا له منځه تګ سره جوخت د زعامت بحران پيدا شو . سردار محمد داؤد د عنعنوي ټولنې په سياسي سيستم کې تغيير راووست . وروسته د خلق ، پرچم مشرتابه د افغاني ټولنې عنعنوي چوکاټ ورمات کړ او افغاني ټولنه يې لهيوې لويې ملي تراژيدۍ سره مخامخ کړه . د جهاد په ډګر کې هم يو داسې ملي مشرتابه منځ ته رانغی چې د افغانستان مختلف قومونه په ځان راټول کړي او غمځپلې افغاني ټولنه د سولې پړاو ته ورسوي .

۲ – ځينې وايي : د ملګرو ملتونو د لوی سکرتر نماينده ښاغلي بينن سيوان د سولې پلان ځکه تخريب شو چې :

الف : ښاغلي بينن سيوان بې وخته پر ډاکتر نجيب الله د استعفی

زمونږ مشران لیکوال مکلف وو چې د دربار په گټه او طرفدارۍ لیکنې وکړي او یا داسې لیکنې وکړي چې اقلاً د سرکار قچرې را ونه توروي . ډېرې لیکنې عندي بڼې لري . یا لیکوالو افغاني ټولنه او د دې ټولنې سیاسي سیستم دومره ستایلی دی چې د دوی د لیکنو له مخې په افغاني ټولنه او د دې ټولنې په سیاسي سیستم کې د سر د ویښته هومره عیب هم نشته او ځینو داسې خپله ټولنه او سیاسي سیستم ټکو لی دی چې هر ښه اړخ یې هم بد معرفي کړی دی .

د شلمې پېړۍ په وروسته نیمایی کې زمونږ د مشرانو پوهانو او لیکوالو یوې برخې د افغانستان د مختلفو قامونو د شجرو ، ژبو ، تاریخ او ادبیاتو څېړنې کړي او یا یې د نورو ژبو آثار ترجمه کړي دي . دوی پخپلو رشتو کې د قدر وړ زیار ایستلی دی او هر یو له خپل استعداد او وس سره سم گټور مواد د کتابونو ، رسالو اومضمونونو په شکل ملي او بین المللي ټولنو ته وړاندې کړي دي . په دوی کې د ځینو پوهانو علمي څېړنې د معاصر علمي میتود په اساس شوي دي او ځینو محض مواد راټول کړي او د علمي میتود نه غیر یې د خپلې خوښې او ناخوښې له مخې د موضوع په اړوند محض عندي تحلیلونه کړي دي .

د نورو علومو په تناسب ټولنپوهنه ، وگړپوهنه ، معاصر اقتصاد او اجتماعي روحیات نوي علوم گڼل کیږي او د دې علومو د میتودونو په اساس د مختلفو ټولنو د ژوند د څېړنو رواج هم وروسته منځته راغلي دي . له همدې امله زمونږ د مشرانو لیکوالو په څېړنو کې داسې آثار چې هغوی دې پکې د سوشیالوجی ، انتروپالوجی ، معاصر اقتصاد ، اجتماعي روحیاتو او د نورو معاصرو علومو د میتودونو په اساس د افغاني ټولنې هر اړخیز علمي تحلیلونه کړي وي د نشت برابر دي .

اعلان وکړ . دغه اعلان سیاسي خلا پیدا کړه او له دغې خلا څخه ځینو ملکي او نظامي پرچمیانو ، د جمعیت اسلامي قوماندان ، دوستم ملیشا او وحدت اسلامي ګټه واخیستله او ټولو یوځای پر کابل قبضه وکړه ، د سولې پلان تخریب شو ، کابل ونیول شو خو ساتل یې ګران شول .

ب : ځینو باندنیو هیوادونو په ځینو ګوندونو او قوماندانانو پریمانه سرمایه ګذاري کړې ده . دوی د ملګرو ملتونو د سولې د پلان کامیابیدل نه غوښتل . دوی ډاریدل چې د ملګرو ملتونو د سولې پلان د کامیابیدو په وجه به په افغانستان کې نوی خپلواك مشرتابه منځ ته راشي دوی به په دغه خپلواك مشرتابه نفوذ نه لري او په نتیجه کې به د خپلو سرمایه ګذرایو ګټې او سیاسي نفوذ له لاسه ورکړي .

۳ – د نجیب الله د رژیم له سقوط نه وروسته د پاکستان ، ایران او سعودي عربستان نماینده ګانو په ډیره بیړه د افغاني ګوندونو او تنظیمونو مشران په پیښور کې راټول کړل او د افغانستان د سیاسي ژوند واك یې د دوی په انحصار کې ورکړ او د اولس لوی اکثریت د خپل سرنوشت له ټاکلو څخه محروم کړلای شو . چوکۍ وویشل شوې ، مبارکۍ وویل شوې ، د سولې زیري ورکړل شول ، څو ورځې لا تیرې نه وې چې سوله په جګړه بدله شوه . وروسته د اسلام آباد او جلال آباد تړونونه لاسلیك شول . د سعودي عربستان ، ایران او پاکستان مقاماتو هم د دغو تړونونو کلك ملاتړ اعلان کړ او امضاوې یې ورباندې وکړې . د تړونونو د کامیابۍ لپاره ډیرې دعاګانې وشوې خو بیا څه مثبته نتیجه یې ورنه کړه . د مرګ ، ژوبلې عملیه لا شدیده شوه او د جهاد پخواني ملګري ، د افغانانو د کورنۍ جګړې په ننداره کیناستل د کابل ړنګیدل او د ښاریانو مرګ ژوبله تردې حده راورسیده چې بالاخره د ملګرو ملتونو د امنیت شورۍ مجبوره شوه چې د افغانستان د کشالې د

سیاسي حل لپاره پریکړه وکړي او د دې پریکړې له مخې د تونس د باندنیو چارو پخواني وزیر ښاغلی محمود مستیري د افغانستان د مسالې د ارزیابۍ د هیئت مشر وټاکل شو او هغه ته ماموریت ورکړل شو چې دې سیمې ته راشي او د افغانانو او د دخیلو حکومتونو د مقاماتو سره خبرې وکړي ، د کشالې د حل ارزیابي وکړي او خپل راپور د ملګرو ملتونو لوی سکرتر ته وړاندې کړي . د ملګرو ملتونو د ارزیابۍ د هیئت د بریالیتوب او ناکامۍ په باره کې لاندینۍ تبصرې کیږي :

اول : د ښاغلي بینن سیوان او د ښاغلي محمود مستیري د هیئتونو ترمنځ توپیر دا دی چې د ښاغلي سیوان په وخت کې ډاکتر نجیب الله د قدرت په ګدۍ ناست و ، جهادي مشرانو د مخالفینو حیثیت درلود او سیاسي قدرت یې نه و ترلاسه کړی . ښاغلي سیوان د ډاکتر نجیب الله او اپوزیسیون ترمنځ خبرې کولې . په دې وخت کې د کابل د ښاریانو په شمول ډیرو افغانانو ډاکتر نجیب الله د افغانستان د خلکو د ستونزو او جګړو اساسي عامل ګاڼه او ډیرو دا فکر کاوه چې د ډاکتر نجیب الله د رژیم د تګ او د مجاهدینو د حکومت د راتګ سره به د دوی په هیواد کې د سولې پروسه چټکه شي . جنګ جګړې به پای ته ورسیږي ، مهاجرین به خپلو کورونو ته راستانه شي او د افغانستان د بیا ودانۍ کارونه به شروع شي . د ښاغلي مستیري په وخت کې د ډاکتر نجیب الله رژیم له منځه تللی دی ، مجاهدینو سیاسي قدرت ترلاسه کړی دی ، له حکومت کولو څخه یې پوره دوه کلونه تیریږي او د دوی ټول کړه وړه افغانانو په عمل کې لیدلي دي . ښاغلی مستیري د افغانانو د مشرانو شوراګانو ، ګوندونو ، تنظیمونو ، ګروپونو ، افرادو او د ټولو قشرونو د نماینده ګانو سره ګوري ، خبرې ورسره کوي او له دوی څخه د افغانستان د کشالې د سیاسي حل لپاره

ليکلي او شفاهي پيشنهادونه اخلي چې له دغو پيشنهادونو څخه عملي فارموله جوړه کړلای شي ، ښاغلی مستيري او ورسره ملګری هيئت راغی او د افغانستان دننه او د باندې يې د مختلفو قشرونو د نماينده ګانو او مشرانو سره وکتل او اوس هم دا کار پر مخ بيايي .

دويم : د ښاغلي بينن سيوان په تناسب ښاغلی محمود مستيري مسلمان او د لوړې رتبې ډيپلومات دی . د ده د راتګ د اعلان په اوريدو د ځينو ډلو مشرانو او د هغوي خارجي طرفدارانو د هغه د وظيفې په لار کې د خنډونو د اچولو لپاره هلې ځلې پيل کړې ، د کابل جګړو شدت وموند ، ځينو قوماندانانو ته هدايت ورکړل شو چې د جګړه مارو ډلو ترمنځ د سولې وساطت وکړي او ښاغلي مستيري ته څرګنده کړي چې جګړه مارې ډلې د ملګرو ملتونو د وساطت په ځای د افغانانو له خوا د سولې وساطت ته ترجيح ورکوي . لوی خنډ د جمعيت اسلامي د مشرانو اعلان دی چې هغه به د جولای د مياشتې په ځای د ۱۹۹۴کال په ډسمبر کې شوری راغواړي او دغې شوری ته به د دولت چارې وسپاري . له دې اعلان څخه پوره څرګنديږي چې د يوې جګړه مارې ډلې مشر د ملګرو ملتونو د سولې په ځای جګړې ته دوام ورکول غواړي او کيدای شي چې د راتلونکې شوری څخه بيا هم د ځان لپاره د دولت د رياست عهده تمديد کړي .

دريم : لوی سوال دا دی چې له يوی خوا د جګړه مارو ډلو مشران په افغانستان کې د اکثريت د درلودلو دعوی کوي او له بلې خوا دوی او د دوی طرفداران د ملګرو ملتونو له لارې سوله نه غواړي ، د دې پوښتنی ځواب داخلي او خارجي عوامل لري :

الف : که چيرې يو ګوند يا تنظيم واقعاً د اکثريت ملاتړ ترشا لري نو بيا د دغه ګوند او تنظيم مشر د ملګرو ملتونو د سولې د راوستلو ،

د موقتي دورې له حکومت او د لويې جرگې له پريکړو څخه ويره نه لري ځکه دغه مشرتابه په دې پوهيږي چې د خلکو اکثريت لههغه سره دی او د انتخاباتو په دوره کې به د خلکو لوی اکثريت د هغه گوند يا تنظيم ته رايې ورکړي . برعکس شايد چې د اکثريت دعوه کوونکی مشرتابه په دې پوهيږي که چيرې خبره واقعاً بيطرفه انتخاباتو ته رسيږي نو په انتخاباتو کې د هغه گوند يا تنظيم ماتې خوري او سياسي قدرت له لاسه ورکوي . همدا علت دی چې د جگړه مارو ډلو مشران د ملگرو ملتونو د سولې د هلو ځلو ، د موقتي بيطرفه حکومت او د لويې جرگې مخالفت کوي او دوی په دې پوهيږي تر څو چې د دوی په لاس کې د وسلو او پيسو قدرت دی ترهغې به سياسي قدرت د دوی په لاس کې وي او د افغانستان په قضيه کې به دوی ته اهميت ورکول کيږي .

ب : د زړې او ناکامه پاليسۍ په دوام ځينې باندني هيوادونه اوس هم کوشش کوي چې په افغانستان کې يوازې خپل ملگري په قدرت کې وساتي او د خپلو ملگرو له لارې افغانستان ته د خپل نفوذ د حوزې بڼه ورکړي . ځينې باندينې هيوادونه تراوسه په افغانستان کې د يو خپلواک دوست رژيم منلو ته تيار نه دي . باندينې پلويان ډاريږي که چيرې د ملگرو ملتونو د کوششونو له امله په افغانستان کې موقتي حکومت منځ ته راځي ، واقعي نماينده لويه جرگه دايريږي او بيطرفه انتخابات کيږي او د خلکو په خوښه خپلواک مشرتوب منځ ته راځي شايد چې په دې صورت کې د دوی ملگري گوندونه ماتې وخوري او د دوی اوږده سرمايه گذاري ضايع ولاړه شي . باندينې پلويان په ښکاره د ملگرو ملتونو د سولې هلو ځلو ته سرونه خوځوي اما په پټه خپل پلويان د ملگرو ملتونو د سولې په لار کې خنډونو اچولو او ناکامۍ ته هڅوي .

ځلورم : ملګري ملتونه يوه بيطرفه نړيوالۍ مؤسسه ده او د نړۍ په هر ګوټ کې د جګړو مخنيوی ، سوله راوستل او د خلکو په خوښه د حکومت انتخاب هم د دغې موسسې د نورو اساسي وظيفو او مسؤوليتونو ترڅنګ شامل دي . افغانستان د ملګرو ملتونو غړی هيواد دی . که له يوې خوا د دغه هيواد کورنۍ جګړو افغانان د ملي تراژيدۍ سره مخامخ کړي دي ، له بلې خوا دغې جګړې د ګاونډيانو ، سيمې او د نړۍ د هيوادونو امنيت او تجارت هم په خطر کې غورځولی دی . افغانان څو ځله د قضيې طرف ، ګاونډيانو او نورو هيوادونو د سولې د ناکامه هلو ځلو تجربه کړې ده . ښاغلي محمود مستيري په خپلو سترګو وليدل چې د افغانستان خلک له جګړو څخه ستړي شوي دي ، سوله غواړي او د خلکو لوی اکثريت د ملګرو ملتونو د سولې د هلو ځلو ترشا ولاړ دی او افغانان پوره باور لري چې يوازې دغه بيطرفه نړيواله مؤسسه د سولې لپاره عملي فارموله تطبيق کولای شي ، په دې شرط چې ګاونډي او نور دخيل هيوادونه په دې قانع کړي چې په افغانستان کې سوله او د خلکو په خوښه بيطرف خپلواک دوست حکومت د ټولو په ګټه دی او ورسره د ملګرو ملتونو د امنيت د شورى د دايمي غړو هيوادونو کلک ملاتړ هم ترلاسه کړي . په دې صورت کې افغانان له‌رواني ملی تراژيدۍ څخه خلاصيږي . که دا ځل د ملګرو ملتونو د سولې هڅې ناکامې شوې نو له دې وروسته به د افغانستان آينده ډيره تياره وي او د تباهۍ او مرګ ژوبلې برسيره خپله د افغانستان وجود له لوی خطر سره مخامخ کيدونکی دی چې له بده مرغه ځينې خلک د افغانستان د تجزيې پلانونه هم لري او د تجزيې لپاره پټې او ښکاره هڅې هم کيږي .

# دکتاتوري او د دکتاتورۍ ناوړه عواقب

دکتاتوري یوه افاقي مسأله ده او د تاریخ په اوږدو کې د نړۍ د هرې ټولنې په اجتماعي جوړښت کې د نورو اجتماعي او سیاسي پروسو ترڅنګ د دکتاتورۍ د عملیې ریښې هم لیدل کیږي . همدا علت دی چې د مودو راهیسې یو شمیر نامتو پوهانو د دکتاتورۍ په تاریخي ، کلتوري ، مذهبي ، نژادي ، ایډیالوژیکي ، سیاسي ، اقتصادي ، نظامي او همدا شان د دکتاتور په رواني اړخ او په داخلي او خارجي مشخصاتو او روابطو پراخه څیړنې کړې دي او دغه څیړنې اوس هم روانې دي . البته د ټولو تیرو پیړیو په تناسب روانه شلمه پیړۍ د اجتماعي.او ساینسي علومو د تکامل او په مشخص ډول د سیاسي شعور د ودې په لحاظ پرمختللې پیړۍ ګڼل کیږي او هم له دې امله د

سیاسي او اجتماعي علومو ډیرو پوهانو د دکتاتورۍ او له دې سیاسي سیستم څخه د زیږیدلو ناوړو عواقبو په برخه کې یو لړ دقیقې ارزیابیګانې کړې دي او د موضوع د اهمیت له امله وریاندې ډیر آثار لیکل شوي دي .

د دکتاتورۍ په تړولو اړخونو بحث د دې لنډ مضمون له دایرې څخه بهر خبره ده ، بلکه مونږ غواړو چې د دې لنډ مضمون له لارې د دکتاتورۍ په ځینو مهمو اړخونو خبرې وکړو . له دکتاتورۍ څخه په زیږیدلو ناوړه عواقبو څه ناڅه رڼا واچوو .

په خپله دکتاتوري مجرد سیاسي مفهوم نه لري ، بلکه دغه سیاسي سیستم د انساني ټولنو د نورو اجتماعي او سیاسي سیستمونو په تناسب پرتله کیږي . همدا شان دکتاتوري د هرې مشخصې ټولنې د مشخص اجتماعي هویت ، کلتوري او مذهبي کودونو او ارزښتونو او اقتصادي پرمختګ او سیاسي شعور سره ژور ارتباط لري . که له یوې خوا د دکتاتورۍ موده او شدت د یوې مشخصې ټولنې په تاریخي پړاوونو کې فرق کوي ، همدا شان د دکتاتورۍ خصوصیات او پروسه هم د یوې ټولنې او د بلې ټولنې ترمنځ زیات توپیر لري . د توپیر اساسي وجه دا ده چې زمونږ د نړۍ انساني ټولنو یو شان پرمختګ نه دی کړی او نه یو شان د پرمختګ له پروسې څخه په شا تنبول شوي دي . د ځینو ټولنو د ځینو نورو ټولنو په تناسب په مادي او معنوي ډګر کې پرمختګ کړی او ځینې ټولنې د ځینو داخلي یا خارجي عواملو له امله د پرمختګ له کاروان څخه وروسته پاتې شوي دي .

دلته د پرمختګ او وروسته پاتې کیدو عوامل نه څیړو . د پرمختګ او وروسته پاتې کیدو د عواملو موضوع پیچلې موضوع ده او په دې موضوع ډیرو پوهانو اوزده بحثونه کړي دي ، بلکه مونږ په

ډیر لنډ ډول ویلی شو چې اوسنی انسان د زرګونو کلونو له کړاوونو ډک په اوږد مزل کې له ډیرو جسمي ، طبیعي ، اجتماعي ، اقتصادي او نظامي مشکلاتو سره مخامخ شوي دي او له ډیرو ارتقایي پړاوونو څخه له تیریدو وروسته د اوسني اجتماعي ژوند مقام ته رارسیدلی دی .

## انساني خصوصیات :

انسان د دې خاورینې کُرې د اوسیدونکي په حیث انساني او حیواني دواړه خصوصیات خپل کړي دي . سره له دې چې هرانسان دغه دواړه خصوصیات لري اما د درجې په لحاظ دغه خصوصیات فرق کوي . په ځینو انسانانو کې انساني خصوصیات ډیر دي او په ځینو کې حیواني خصوصیات او دغه دواړه ډلې انسان ته له خپلو خپلو عینکو ګوري . هغه انسانان چې د انسان په انساني خصوصیاتو پوره باور لري دوی له آسماني او زمکني کتابونو او تجربو سره سم د خپل نظر او عمل له لارې انسان ته د اشرف المخلوقات لوړ مقام ورکوي ، انسان د خدای (ج) خلیفه ګڼي او په انسانانو کې لوړ انساني ارزښتونه او اخلاق روزي او د فرد او افرادو ترمنځ او د یوې او بلې ټولنې ترمنځ انساني اړیکو ته وده ورکوي او په انسان کې انساني خصوصیات لا پسې پیاوړي کوي . دا ډله د قرآن مجید په دې مبارک ارشاد چې وایي : « د یو بیګناه انسان قتل د ټول انسانیت قتل دی » پوره ایمان لري او دوی نه غواړي چې د یو بیګناه انسان د قتل په وجه د آدم (ع) نه نیولې د انسانیت ترپایه د ټول انسانیت د قتل په لویه ګناه او جُرم د لوی خدای (ج) په حضور کې ودریږي او تر ابده د جهنم د اور خوراک شي . برعکس هغه انسانان چې د انسان انساني لوړو خصوصیاتو ، ارزښتونو او اخلاقو ته قایله نه دي او انسان یوازې د حیواني

خصوصیاتو مجموعه ګڼي . دغه ډله محض په حیواني خصوصیاتو ولاړې دکتاتوري ، ډار او زور ، ظلم څخه کار اخلي او دغو دکتاتورانو ته نه د بیګناه انسان قتل ګناه او جُرم ښکاري او نه د محشر په ورځ د الله تعالی د ذرې ذرې په حساب عقیده لري .

د نامتو سیکالوجستانو او ټولنپوهانو له خیړنو څخه جوته شوې ده چې هر ډول فردي دکتاتوري د کورنۍ د موروثی خصوصیاتو او یا د چاپیریال څخه او دسته جمعي دکتاتوري د کلتوري ، مذهبي ، نژادي او یا د ایډیالوژیکي برترۍ یا د کمترۍ له احساس څخه سرچینه اخلي او همدغه احساس په فرد یا په یوه مشخصه ټولنه کې پیچلې عقدې را پیدا کوي . د مثال په توګه یا یو دکتاتور د مور یا د پلار له سلسلې څخه ځینې داسې موروثي خصوصیات خپلوي چې دغه غیر نورمال خصوصیات د هغه د ټولنې د منل شویو عنعنو ، ارزښتونو او کودونو سره په تضاد کې واقع کیږي او د دغه متضادو خصوصیاتو له امله د ټولنې وګړي دغه شخص د غیر نورمال ( لیوني ) او یا دکتاتور په نوم بولي . یا یو شخص د ژوند په ابتدایی حساسه مرحله کې د یوې مشخصی پیښې یا پیښو سره مخامخ کیږي . دغه پیښه د دغه شخص په ذهن ژوره بده اغیزه کوي او د دغې حادثې له امله په هغه کې عقده راپیدا کیږي . دغه حادثه یا د دغه شخص په ذهن کې ژوندۍ پاتې وي او یا دغه بده پیښه د هغه د ذهن په لا شعور کې ځای نیسي چې په دوارو صورتونو کې دغه مشخصه پیښه یا پیښې د دغه شخص په نظر او د ژوند په کړنلاره کې ژور بدلون راولي . د ټولو دکتاتورانو له ژوند پیښو څخه څرګندیږي چې ځینو دکتاتورانو غیر نورمال خصوصیات په موروثي توګه خپل کړي دي او ځینو دکتاتورانو ته د ماشومتوب یا زلمیتوب په دورو کې له ځینو مشخصو پیښو څخه

عقدې را پیدا شوې دي . دغه عقدې په هغو کې د انتقام روحیه پیاوړې ساتي او په نتیجه کې هغوی په شعوري یا غیرشعوري توګه د خپلو عقدو لپاره په یوه یا په بل نوم مجرا ورکوي او ډېر معصوم انسانان د خپلو عقدو د تسکین په خاطر له بدو ورځو سره مخامخ کوي .

انسانان اجتماعي مخلوق دی . هر بنیادم له خپلو فطري خصوصیاتو سره په یوه مشخصه ټولنه کې پیدا کیږي او د هر بنیادم له پیدا کیدو نه مخکې دغه مشخصه ټولنه خپل ځانګړي کلتوري ، مذهبي ، قومي او یا سیاسي ، ایډیالوژیکي ، اقتصادي اونور ارزښتونه عنعنې ، کودونه او قوانین لري او هر بنیادم د خپلې ټولنې له ځانګړو ارزښتونو ، عنعنو ، کودونو او قوانینو سره سم روزل کیږي او هغه د ژوند ترپایه د خپلې ټولنې له اجتماعي روابطو سره سم او یا په انحرافي ډول فکر او عمل کوي . د سیکالوجستانو او ټولنپوهانو د څیړنو له مخې د هرې ټولنې د غړو وګړو پراخ نظري او تنګ نظري د دوی د ټولنې د عنعنو ، ارزښتونو ، کودونو او قوانینو سره ارتباط لري . هغه ټولنې چې پراخ نظره کلتور لري د دغو ټولنو غړي وګړي د نورو ټولنو کلتور ، مذهب ، نژاد ، ملي ارزښتونو او عنعنو او سیاسي او اقتصادي قوانینو او اجتماعي کودونو ته د برابرۍ او روا دارۍ له مخې په درونه نظر ګوري او د ټولنې غړي وګړي د خپلې ټولنې دننه او د باندې ټولو انسانانو سره د برابرۍ او روا دارۍ سلوك ته هڅوي . برعکس په کلتوري لحاظ تنګ نظره ټولنې په خپلو غړو وګړو کې د نورو ټولنو د کلتور ، مذهب ، نژاد ، ملي ارزښتونو ، عنعنو ، کودونو او د سیاسي او اقتصادي ژوند په ضد نفرت او تعصب راپاروي او د دغو ټولنو په سر کې ولاړ دکتاتوران د ټولنو په غړو وګړو کې تل دا روحیه تزریقوي چې یوازې د دوی کلتور ، عقیده ، نژاد ، ملي ارزښتونه ، عنعنې ،

د زده کړې او روزنې د انکشافي پروګرامونو په اساس يو شمير ځوان افغانان د لوړوزده کړو لپاره لويديزو هيوادونو ته وليږل شول او ځينو د سوشيالوجۍ ، انتروپالوجۍ ، معاصر اقتصاد اونورو اجتماعي علومو په څانګو کې د لوړو شهادتنامو سره خپل هيواد ته راغلل او له دوی څخه ځينو د دموکراسۍ د دورې د پيل نه د ثور تر کودتا پورې د افغاني ټولنې په مختلفو اړخونو ابتدايي څيړنې شروع کړې او د خارجي علماوو په ځای يې د خپلې ټولنې په ظاهره ساده اما په واقعيت کې د پيچلي اجتماعي جوړښت ، اجتماعي روابطو ، اجتماعي فعاليتونو ، اجتماعي روحياتو ، ارزښتونو ، کودونو ، نورمونو او عنعنو څيړنو ته ملا وتړله . له بلې خوا د جمهوريت په دوره کې د افغان ځوان نسل د بيګانه ګۍ احساس ته پاملرنه وشوه او د دې دورې مسؤولو اشخاصو ځينو افغان پوهانو ته « د افغانستان پيژندنې » په نوم د کتاب د ليك وظيفه ورکړه اوټينګار يې وکړ چې دغه کتاب به د افغانستان په پوهنتونو او د لوړو زده کړو په نورو مؤسسو کې د زده کړې د نصاب د يوې مهمې برخې په حيث تدريس کيږي . د کتاب د ليك او تدريس په پروګرام لاس پورې شوی و ، چې د غوبې کودتا هر څه په ښکر ووهل او د بيګانه ګۍ د احساس د مخنيوې په ځای يې ټول هيواد د بيګانه وو په لاس کې ورکړ .

## شوروي ليکوال :

د کمونستي بلاك او په مشخص ډول د شوروي اتحاد څيړونکو او ليکوالو د هرې ټولنې څيړنه د ايډيالوژۍ او ګوندي فارمولو په اساس کوله او د ټولو ټولنو لپاره يې يو شان افاقي فارمولې استعمالولې . دوی له ورکړل شوو فارمولو څخه د انحراف اجازه نه درلوده او شوروي

کودونه او سیاسي او اقتصادي کړنلارې له نورو ټولو انساني ټولنو څخه غوره او برتره دي او دوی حق لري چې نورې ټولې انساني ټولنې په زور تابع کړي . د برترۍ د دې احساس له مخې د تاریخ په اوږدو کې ډیرو قومونو او هیوادونو د پرمختللي کلتور ، د ربنتیني مذهبي عقیدې ، د غوره او برتره نژاد ، د انساني غوره تمدن د ارزښتونو ، د علمي ایډیالوژۍ او د واقعي سیاسي او اقتصادي سیستمونو د خپرولو او تحمیل په هڅه په ډیرو انساني ټولنو یرغلونه کړي دي او تل یې د انساني ټولنو ترمنځ نفرت ، تعصب او خونړیو جګړو ته لمن وهلې ده .

## د دکتاتورۍ بڼې :

د تاریخ په هره دوره کې دکتاتورۍ مختلفې بڼې غوره کړې دي. په لرغونو ټولنو کې دکتاتوري په فزیکي قوت او په پرمختللو جنګي وسایلو ولاړه وه . په لرغونو دورو کې د کورنۍ قوي پهلوانانو د فزیکي قوت او یا د کهول او قبیلې د ډیر شمیره ملاتړ په وجه د خپلې ټولنې ضعیف خلك په زور را لاندې کړل او دکتاتوري یې ورباندې کوله . د ښکار او مالدارۍ په دورو کې اکثره نښتې د ښکار ، رمو او څرځایونو په سر کیدلې او د جګړو په نتیجه کې د مغلوبه ټولنې د غړو لوی اکثریت وژل کیده او د زراعت په دوره کې بریالیو قومونو د وژلو په ځای د مغلوبو ټولنو نارینه د غلامانو په حیث د کرنې او مالدارۍ په کارونو بوختول او ښځې یې د مینځو په توګه استعمالولې . اوسني سیاست پوهان د مختلفو دورو دکتاتوري سیستمو ته مختلف نومونه ورکوي . د دوی د څیړنو له مخې په ځینو ټولنو کې د دکتاتوري سیستم د څو اشخاصو له خوا په ګډه چلول کیږي . په ځینو ټولنو کې د دکتاتوري رژیم د ایډیالوژۍ په بنسټ ولاړ ټولواك سیستم

گټل کیږي او د شرق په ځینو هېوادونو کې دکتاتوری ته د « شرقي مطلقیت » نوم ورکړل شوی دی .

د یو شخص د مطلق العنان دکتاتوري عملیه د یورپ ، آسیا او افریقا په مختلفو هېوادونو کې په لږ توپیر یو شان منځ ته راغلې ده . دغه دکتاتوري یا په موروثي توګه دوام مومي او یا په دربار کې د کودتا له لارې تحمیلیږي . د موروثي دکتاتوری په پرتله د دربار د دکودتا له لارې تحمیل شوې دکتاتوري هېوادونه له ناوړه عواقبو سره مخامخ کوي ځکه چې نوی دکتاتور په هېواد کې مشروعیت نه لري ، بلکه دغه دکتاتور د یو مشخص ګروپ له خوا چې په هغوی کې د دکتاتور ملګري ، د دربار د سیسه کاران او خپلوان ( چې د نوي دکتاتور د راتګ سره ورته ګټه رسیږي ) شامل وي . همدا شان د ځینو هېوادپوهانو په نظر شرقي مطلقیت یا شرقي دکتاتوري د آسیا د ځینو سیمو له اقلیمي ، جغرافیایی ، کلتوري ، مذهبي او اجتماعي شرایطو سره ژورې اړیکې لري . د شرقي مطلقیت دکتاتوري په نظامي او ملکي دواړو ارګانونو باندې ولاړه وي . ددغو هېوادونو په سر کې ولاړ دکتاتوران د دولت ټول اورګانونه او ټولې مذهبي چارې پخپلو لاسونو کې نیسي او مذهب د خپل مطلقیت په خدمت کې استعمالوي . دغه دکتاتوران ځانونو ته دا حق ورکوي چې د سیاسي ، مذهبي ، اقتصادي ، اجتماعي او نظامي چارو د چلولو لپاره پخپله خوښه اصول ، اساسات او کړنلارې جوړې کړي او ځانونو ته په زمکه باندې د « خدای د نماینده ، د خدای نایب او د خدای د سیوري » په نومونو د خپلو هېوادونو له اوسیدونکي رعیت څخه د خپلو حکمونو د منلو لپاره بې قید او شرطه بشپړ اطاعت ترلاسه کړي . د شرقي مطلقیت په سر کې ولاړ دکتاتوران د خپلو هېوادونو د دولتي چارو اورګانونه د وفادارو شهزادګانو ، بډایانو ، لویو

جاگیردارانو ، بیروکراتانو او مذهبي شخصیتونو په مرسته چلوي . ټولواکه ایډیالوژیکي دکتاتوري په فردي او گروپي دواړو شکلونو منځ ته راځي . په فردي شکل په کال ۱۹۲۲ کی د فاشستي گوند مشر موسولیني او په ۱۹۲۹ کال کې د جرمني د نازي گوند مشر هټلر ایدیالوژیکي دکتاتوریگانې په ایټالیه او جرمني ټولنو تحمیل کړې او د گروپي یا گوندي ایدیالوژیکه دکتاتوري د کمونست گوند له خوا په شوروي اتحاد ، ختیز یورپ او د اسیا ، افریقا او لاتیني امریکا په یو شمیر ټولنو وتپل شوه چې د ایدیالوژیکي دکتاتورۍ بقایا اوس هم په چین ، شمالي کوریا او کیوبا کې شته . نظامي دکتاتوري د ځینو صاحب منصبانو د گډې کودتا په واسطه منځ ته راځي او په نظامي دکتاتورۍ کې مهم کودتاچیان ځانونه په لږ توپیر د یو بل مساوي گڼي او د دولت ټول مهم او حساس ا رگانونه خپل ترمنځ ویشي او دولت ټول مهم پوستونه د دوی له خوا چلول کیږي . نظامي کودتاچیان فرمانونه جاري کوي او یا له خپلې خوښې سره سم موقتي اساسي قوانین یا کرنلاړې جوړوي . انقلابي شوری او نوی مشورتي نظامي یا نیم نظامي تنظیمونه منځ ته راوړي او د کودتا په سر کې ولاړ دکتاتور وفادارو ته د مکافاتو او مخالفینو ته د مجازاتو په فارمول عمل کوي .

## د دکتاتورۍ مشروعیت :

په مختلفو ټولنو کې د دکتاتورۍ د مشروعیت موضوع مختلفې بڼې لري . د سیاسي علومو د پوهانو په نظر له لومړۍ ورځې څخه هر دکتاتور په دې هڅه کې دی چې د خپلې دکتاتورۍ د تحمیل او منلو لپاره د خپلې مشخصې ټولنې د سیاسي تعامل او قوانینو او د اجتماعي ننعنو او ارزښتونو په چوکاټ کې د مشروعیت زمینه برابره کړي

او هغه تل زیار باسي چې پخپلو خلکو ته دا ومني چې د هغه حکومت کول مشروع بنه لري . دا د هر دکتاتور هڅه وي چې د خپلې دکتاتورۍ د مشروعیت لپاره له مختلفو تاکتیکونو او پلمو څخه کار واخلي او د تاریخ په اوږدو کې دغه تاکتیکونه او پلمې د مختلفو دکتاتورانو له خوا د مذهب ، د ملي یا ازادي گټو ، د دولت د تحفظ ، د خلکو د نیکمرغۍ ، د طبقاتي گټو او حقوقو د ژغورنې ، د ټولنې د ارتقا او پرمختگ ، د سولې او امنیت او داسې د ډیرونورو شعارونو په بڼه څرگند شوي دي . د دغو تاکتیکونو ، پلمو او شعارونو سلسله اوږده ده ، موږ له دغې اوږدې سلسلې څخه یو څو پلمې د مثال په توگه وړاندې کوو .

## د مذهب په نوم مشروعیت :

له ډیرو لرغونو دورو څخه د نړۍ د انساني ټولنو لوی اکثریت ، د مختلفو مذهبي عقیدو په دنیا کې ژوند کړی دی او د تاریخ په اوږدو کې د هرې ټولنې خلکو ، وگړو د خپلو مذهبي عقیدو د تحفظ او خپرونې په لار کې هر ډول ځاني او مالي قربانۍ ورکړې دي . دا یو واقعیت دی چې خلک د مذهب په نوم ډیر ژر را پاریږي او د دې واقعیت له مخې د ډیرو دکتاتورانو خپلو دکتاتوریو ته د مذهب په نوم رنگونه ورکړي دي او دوی تل زیار ایستلی چې د خپلو ټولنو د خلکو مذهبي احساسات د خپلو اهدافو لپاره استخدام کړي او د خلکو له احساساتو څخه په ډیره پورې گټې ترلاسه کړي . د مذهب په نوم دکتاتوري ، د سیاسي اهدافو په لار کې د مذهب استخدام او د مذهب په نوم د خلکو له احساساتو څخه استفاده کول په یو برانظام او یا په یوې مذهبي ټولنې پورې محدود نه دی ، بلکه د مذهب په نوم د دکتاتورۍ او

انحصار عملیې د ټولو براعظمونو په ټولو مذهبي ټولنو کې په مختلفو بڼو منځ ته راغلي اوتللي دي او اوس هم دوام لري . د مذهب په نوم د دکتاتورۍاو انحصار لپاره د خلکو د عقیدو او احساساتو څخه استفاده کول اسانه وسیله ده ، چې د مذهب په نوم د ډیرو دکتاتوریو له جملې څخه په یورپ کې د کلیسا دکتاتوري د نمونې په توگه وړاندی کیږي .
د یورپ په تاریخ کې منځنۍ پیړۍ د تورې دورې په نوم بلل کیږي . په دې دوره کې د کلیسا مذهبي هرارشي د یورپ د عیسوي ټولنو د ژوند په ټولو اړخونو مسلط شوې وه او د کلیسا د مذهبي انحصار غوښتونکو په عقیده عیسوي مذهب د نوروټولو مذهبونو په مقایسه مکمل او افضل مذهب دی او د عیسوي ټولنو پاچهان او اولسونه مکلف گڼل کیدل چې سیاسي مسایل او د ژوند ټولې چارې د کلیسا د احکامو او کړنلارو په بنسټ وچلوي . د کلیسا انحصار غوښتونکو د دنیا او آخرت د دواړو چارو واك پخپل لاس کې درلود او له ټولو مسایلو برسیره د مقدسو او نامقدسو جنگونو فیصلې هم د کلیسا له خوا کیدلې . هم د دغه انحصار په اساس په دیارلسمه پیړۍکې کلیسا د انگلستان ، فرانسې ، جرمني او د یورپ نورو پاچاهانو ته د بیت المقدس په سر د خونړیو صلیبي جگړو د کولو امر ورکړ . همدا شان د کلیسا په سر کې ولاړو انحصار غوښتونکو د عیسوي ټولنو ټولې سیاسي ، علمي ، اجتماعي ، کلتوري اوتعلیمي مؤسسې او شخصیتونه په دې مجبورول چې د کلیسا ټول حکمونه ، فیصلې او فتوی دې په پټو سترگو ومني او هغه سیاسي ، علمي ، اجتماعي ، کلتوري ، اقتصادي ، تعلیمي او ساینسي ابتکار چې د کلیسا د تایید نه غیر کیده ، کلیسا په دغو ټولو ابتکارونو د کفر او الحاد فتوې ورکولې . توره دوره د مطلق جمود دوره وه . په دې دوره کې د

یورپ ډیر نامتو پوهان د کفر او الحاد په تور تورن شول ؛ ډیرو ته د مرگ جزاگانې ورکړل شوې ؛ ډیر نورو هیوادونو ته وتښتیدل او د ډیرو عالمانو علمي آثار د کلیسا په حکم وسوځول شول . وایي : « تنگ آمد به جنگ آمد » . د کلیسا له مذهبي دکتاتورۍ او بې ځایه انحصار او مداخلو څخه د یورپ خاص او عام خلك یو شان پوزې ته راغلل ، ستړي شول ، تنگ شول او د کلیسا په ضد له مبارزې پرته بله هیڅ لار ورته پاتې نه شوه . خاص او عام خلك یو شان د کلیسا په ضد راپورته شول او دوی په یوه اوږده مبارزه لاس پورې کړ . د دې اوږدې او خونړۍ اما د جرآت نه ډکې مبارزې په نتیجه کې د کلیسا د انحصار غوښتونکو د دکتاتورۍ او د مذهب په نوم د بې ځایه مداخلو تېغر ورټول شو . د تورې دورې توره پرده وشلیده او د یورپ اولسونو له کلیسا څخه د لومړي ځل لپاره خپله سیاسي ، اقتصادي ، اجتماعي ، کلتوري او علمي خپلواکي ترلاسه کړه . د دغې اوږدې مبارزې په نتیجه کې د کلیسا انحصار غوښتونکي مجبور کړلای شول چې خپل مذهبي فعالیتونه د مهذبي چارو او اخلاقي ارزښتونو په چوکاټ کې محدود وساتي او د دولت چارې د دولت په سر کې ولاړ پاچا ته وسپاري . د کلیسا او دولت ترمنځ د بیلتون کرښه راکښل شوه . د مذهب چارې کلیسا ته او د دولت چارې د هیواد دولتي اورگانونو ته وسپارل شوې او کلیسا د دکتاتورۍ په ځای اخلاقي ، اجتماعي او بشري فعالیتونو ته مخه کړه .

## د نژاد په نوم مشروعیت :

د سیاسي علومو پوه پروفیسور لاسکي په نظر په افراطي بنیادمانو کې « زما او زمونږ » روحیه دومره پیاوړې وي چې هغوی د خپل ځان

د خپلو کورنیو ، سیمو او هیوادونو ته په سپك او ټيټ نظر گوري ، لکه
چې مخکې ورته اشاره وشوه دغه افراطي روحیه د نژادي برترۍ یا د
کمترۍ د احساس له امله پیاوړې کیږي . د نژادي برترۍ احساس د
مذهبي ، کلتوري ، سیاسي او ایډیالوژیکي برترۍ له احساس سره هم
ژورې اړیکې لري . د تاریخ په شهادت د نژادي برترۍ احساس په
مختلفو ټولنو کې وخت په وخت سر راپورته کړی دی او د دغو ټولنو
یو شمیر نامتو پوهانو هم د نژاد ، کلتور او پرمختللی اقتصادي ،
سیاسي او ایډیالوژیك سیستمونو د تحمیل په هڅه د خپلو ټولنو د
پراختیا غوښتونکو دکتاتورانو او یرغلگرو له پالیسیو سره هم مرستې
کړې دي . د یونان نامتو پوه ارسطو ته یوازې دا چې د یونان
اوسیدونکي یې متمدن بلل او نورو اولسونو ته یې وحشیان ویل ،
بلکه دغه پوه د خپل شاگرد لوی سکندر د پراختیا غوښتونکي سیاست
او په اصطلاح په نورو وحشي اولسونو باندې د یونان د سیاسي
سیستم ، کلتور او تمدن د تحمیل په لار کې پوره ملاتړ کاوه . له هغه
ورغه د ځینو پوهانو له نژادي برترۍ سره د ملاتړ دغه اوږده سلسله
تراوسه په یوه او بل شکل راروانه ده او د آسیا او یورپ د تاریخ په
مختلفو دورو کې یو شمیر پوهانو ترڅنگه وسنه د نژادي برترۍ نظریو ته
علمي بڼې ورکړې دي او د خپلو وختونو دکتاتوران او یرغلگرو یې د
نورو اولسونو د را لاندې کولو او نیولو لپاره پوره تشویق کړي دي .
سره له دې چې د آسیا یو شمیر درباري پوهانو هم د نژادي برترۍ په
ډگر کې د شرقي دکتاتورانو په خدمت کې پوره منډې وهلي دي اما د
دوی په تناسب د یورپ د نژادي برترۍ پلویان ډیر مخکې تللي دي او
دوی دغې نظریې ته عملي او مؤثرې بڼې ورکړې دي ، د دوی د
شعارونو له مخې د یورپ سپین پوستي غوره او متمدنه قومونه دي .

دوی حق لري چې د آسیا ، افریقا او امریکا په وروسته پاتې ( د ځینو په نظر وحشي ) قومونو حکومت وکړي . دا د سپین پوستو مذهبي او تاریخي فریضه او رسالت دی چې د آسیا ، افریقا او امریکا اولسونه د دغو ټولنو د وحشي حکمرانانو له پنجو څخه خلاص کړي او د دغو ټولنو اولسونو ته د غرب د تمدن ، کلتور ، مذهب او د پرمختللي سیاسي ، اداري ، علمي ، اجتماعي او اقتصادي ژوند سره آشنا کړي . په نتیجه کې د نژادي برترۍ په شعارونو او پلمو سمبالې یورپي لښکرې د آسیا ، افریقا او امریکا گوټ گوټ ته ورسیدلې او د نژادي برترۍ د نظریې په اساس د تعصب ، نژادي توپیر ، د تور پوستو د غلامۍ او تشدد ډکې نورې انساني تراژیدۍ پیل شوې .

د رواني شلمې پیړۍ په ۱۹۱۹ او ۱۹۲۲ کلونو کې په جرمني کې د نازیزم او په ایټالیا کې د فاشیزم په نومونو د نژادي برترۍ د نهضتونو بنسټ کیښودل شو او په پای کې د دغو نهضتونو په قوت په جرمني هتلر او په ایټالیا کې موسولیني سیاسي قدرت ته ورسیدل . دواړو نظریو ډیر گډ خصوصیات درلودل او د دغو گډو خصوصیاتو له امله ځینې څیړونکي دواړه نظریې د فاشیزم په نوم بولي . د فاشیزم د نهضتونو نظر او عمل دواړه د نژادي برترۍ په نسبت ولاړ دی چې نازیانو جرمنیان یوازینی سوچه او اصیل آریایي نسل گاڼه او فاشستانو د لرغوني روم د لویې امپراتورۍ د بیا راژوندي کولو لپاره هڅې کولې . د فاشیزم د نظریې له مخې یوازې جرمني نژاد حق لري چې ځوان جرمني نژاد په نظامي روحیه تربیه کړي ؛ د نورو اولسونو ځمکې په زور ونیسي او د پرمختللي تمدن او ښه ژوند په خاطر په نورو اولسونو حکومت وکړي . د فاشیزم د نظریې له مخې د ټولنې ټولې مؤسسې د دولت نه جلا کیدونکې برخه ده ، د ټولنې د ټولو غړو او

مؤسسو واك له دولت سره دی او د دولت واك د فاشستي گوند د مشرتابه په لاس کې دی . د ټولنې ټول غړي مکلف گڼل کېدل چې د فاشيزم گوند مشرته د خارق العاده استعدادونو د څښتن په نظر وگوري ، د ملي سمبولونو سره مينه وښيي او د گوند مشرتابه په ډېرو لوړو اوصافو وڼمانځي . فاشيزم د نړيوال کمونيزم ، دموکراسۍ ، مساوات طلبۍ ، د بشر د حقوقو ، بلکه د هر ډول آزادۍ په ضد نهضت و . د نژادي برترۍ د احساس په اساس نازي جرمني د کمونيزم په مرکز شوروي اتحاد او د يورپ د نورو هيوادونو په ضد دويمه نړيواله جگړه پيل کړه ، په مليونونو يهوديان يې مړه کړل او بالاخره امريکا هم په دې خونړۍ جگړې کې راښکيل شوه .

## د کارگري دکتاتورۍ په نوم مشروعيت :

د شروع راهيسې د مارکسيزم – لينينيزم ايډيالوژي د ښکته او پورته طبقو د طبقاتي مبارزو يا نه پخلا کيدونکو دښمنيو په بنسټ ولاړه وه . د دې ايډيالوژۍ له مخې د غلامۍ ، فيوډالۍ او سرمايه دارۍ په دورو کې د غلامانو ، بزگرانو او کارگرانو طبقې د مالکانو ، فيوډالانو او سرمايه دارانو د پورته طبقو له پرله پسې استثماري عمليې سره مخامخ وي او د سرمايه دارۍ په دوره کې يوازې د کارگرو طبقه کولای شي چې د منظم او منسجم انقلابي عمل په واسطه د سرمايه دارانو پورته طبقه له منځه يوسي او په تاريخ کې د لومړي ځل لپاره د کارگري دکتاتورۍ د سيستم په اساس د استثمار دغې اوږدې پروسې ته د تل لپاره خاتمه ورکړي . د کمونستي ايډيالوژۍ د مشرانو په نظر د طبقاتي مبارزې سياست مبارزه ده ، خونړۍ جگړه ده ، په دښمن حمله ده او د کارگري دکتاتورۍ قانون پولادي سوك دی

او د دغه سوك اساسي هدف د دښمن ټکول دي . دوی عقیده درلوده چې
د دولت ماشین د پورته طبقې په لاس کې د ښکته طبقو د ټکولو لپاره
د مهمې وسیلې حیثیت لري او څه وخت چې د کمونست ګوند د دولت
په ماشین قبضه وکړي هم له دغه وخت څخه دا د حرفه یی انقلابیونو د
مخکښ کمونست ګوند تاریخي رسالت دی چې د دولت ماشین به حتماً د
پورته طبقې په ضد ترهغې استعمالوي څو چې پورته طبقې بیخي له
منځه یوسي او په پای کې راتلونکی سوشلستی او کمونستي مرحلو
ته لار اواره کړي .

د دکتاتوری په باره کی د لینن ، ستالین او د کمونست ګوند د نورو
مشرانو نظر او عمل له هیچا څخه پټ نه و او په دې موضوع مارکس ،
انګلس ، لینن ، ستالین ، ماوزی دونګ ، هوچي من او نورو کمونستانو
ډیر آثار لیکلي دي . د همدې ایډیالوژۍ په اساس په کال ۱۹۱۷ کې
لینن او د هغه د بلشویك ګوند ملګرو په تزاري روسیه کې د کارګرو په
نوم دکتاتوري تحمیل کړه او د تزاري روسیې په پراخه امپراتورۍ یې د
دکتاتورۍ پولادي پرده خپره کړه . د ځینو پوهانو په نظر د اکتوبر
انقلاب یا کودتا ته د کارګرو په نوم پورې تړلې دکتاتوري ځکه وایي
چې په واقعیت کې د بلشویك د ګوند په سر کې ولاړ مشران نه د
کارګرو له کورنیو څخه وو او نه یې پخپله د کارګرو غوندې د کار تجربه
درلوده ، بلکه لینن د کارګرو په سیاسي شعور شك درلود او ده باور نه
لاره چې کارګران دې پخپله د کارګري دکتاتورۍ لپاره انقلاب وکړلای
شي ، انقلابي عملیه دې ټینګه وساتي او د کارګري دکتاتورۍ انقلابي
دندې دې پای ته ورسوي . د همدې نا باورۍ په وجه لینن د کارګرانو په
ځای د حرفوي انقلابیونو یو داسې مخکښ ګوند ته چې د ده په
اصطلاح په علمي کمونستي ایډیالوژۍ سمبال دی ترجیح ورکوله .

لیکوالو نه شو کولای چې د یوې ټولنې د مشخصو واقعیتونو د څېړنو په نتیجه کې دې کمونستي ایډیالوژي او یا ګوندي اهداف د تضاد سره مخامخ کړي . د افاقي کمونستي فارمولې له مخې هره ټولنه د تولیدي وسایلو او اقتصادي پرمختګ له امله د یوې مرحلې نه بلې مرحلې ته تیریږي او د هرې مرحلې مشخص، زیر بنایي بدلون د دغې ټولنې سربنایي اقتصادي ، سیاسي ، اجتماعي او کلتوري روابطو ته تغیر ورکوي او دغه ټولنه پرمخ ځي .

د دوی په نظر د کار د ساده تولیدي وسایلو په وجه لومړی کمیون یا ابتدایي ټولنه منځته راځي او په دې دوره کې د تولید وسایل او تولیدي منابع ګډ ملکیت ګڼل کیږي . د غلامۍ په دوره کې د غلامانو د کار له امله د تولید وسایل او ور سره اقتصادي تولید انکشاف کوي او په دې مرحله کې ټولنه په پورته او کښته طبقه ویشل کیږي او د بادار او غلام پورته او کښته طبقې جوړیږي او د استثمار کوونکي او استثمار شوی یا د پورته او کښته طبقو ترمنځ مبارزه پیل کیږي . په فیوډالي دوره کې د ځمکې لرونکي فیوډال او بزګرو ترمنځ طبقاتي روابط او مبارزه لاپسې زیاتیږي او د سرمایه دارۍ په دوره کې د سرمایه دارو او کارګرې طبقې ترمنځ د استثمار عملیه او مبارزه شدت مومي ، چې په نتیجه کې د سرمایه دارو استثمارګره طبقه ماتې خوري او د دې طبقې له ماتې وروسته سوشلستي دوره شروع کیږي چې په دې دوره کې د دولت طبقاتي ماشین د کارګرې طبقې نماینده ګوند ته په لاس ورځي او د دولت د ماشین په واسطه پورته طبقه او د دې طبقې ټولې بقایا ټکوي او په دې مرحله کې د ټولنې ټول تولیدي وسایل د ګوند او له ګوند څخه د جوړ شوي دولت په ، لاس کې پریوزي ، خصوصي ملکیت له منځه ځي ، د ټولنې غړي و ګړي د خپل استعداد او

# د افغاني ټولني د زعامت خلا

( د مقالو مجموعه )

لیکوال

پروفیسور عبدالرسول امین




ټولوونکی

شاه محمد اکبر

۱۳۷٤

## د کتاب پیژندنه

*د کتاب نوم : د افغاني ټولنې د زعامت خلا

*لیکوال : پروفیسور عبدالرسول امین

*خپروونکی : د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه

*د چاپ ځای : [illegible]اپ پرنټرز - پیښور

*د [illegible] : ۱۳۷٤ - ۱۹۹۵ ع

*تیراژ : ۲۰۰

*د چاپ مهتمم : لعل پاچا آزمون

*کمپوزر : سید حسین پاچا

# فهرست

| سرلیك | مخ |
| --- | --- |

| سرلیك | مخ |
|---|---|